# مینه او جګړه

((ناول))




لیکوال: علم ګل سحر

**کتاب پېژندنه:**

**نوم:** مینه او جګړه (ناول)

**لیکوال:** علم ګل سحر

**خپرونکی:** د قلم نړیواله ټولنه

**چاپ چارې:** لینا شریفي

**د پښتي طرحه:** ژکفر حسینی

**کمپوز:** فرید احمد یوسفزی

**چاپځای:** میوند خپرندویه ټولنه کابل.

ټیلیفون: ۰۷۰۲۸۴۹۵۴، ډجیتال: ۰۳۵۶۹ ۲۱۱

**ګرځنده ټیلفون:** ۰۷۰۲۱۷۰۱۲

**بریښنالیک:** sahar_roman@yahoo.com

**دده آثار دادي:**

**چاپ آثار:**

۱_ د لمر جنازه　　د شعرونو ټولګه (۱۳۷۷)

۲_ د پاريال خوبونه　　//　　(۱۳۸۰)

۳_ مينه او وسواس　　د لنډو کيسو ټولګه (۱۳۸۳)

۴_ پاس سپوږمۍ ده، لاندې ته يې _ د شعرونو ټولګه (۱۳۸۵)

۵_ شيطان ځراغ　　د طنزيه کيسو ټولګه (۱۳۸۵)

۶_ مينه او ځګره　　(ناول) همدا اثر

**ناچاپ آثار:**

۱_ د ښاپيرۍ په لټه　　(د لنډو کيسو ټولګه)

۲_ خوته مې ونه ليدې　　(د شعرونو ټولګه)

۳_ کله چې مور وخاندي　　(د ماشومانو لپاره شعرونه)

۴_ د متلونو کيسې

۵_ کاروانونه د بګوا په دښت تيرېږي (د سندرونو او نارو په باب خيړنيز اثر)

۶_ تاريخچه و فهرست مجله عرفان (اثر تحقيقى)

۷_ ژوند په شيبو کې　　(خيړنيز اثر)

ښاغلی سحر په آزادي راډيو کې په ژورناليستيکو کارونو سربېره د قلم د ادبي مجلې مسوول مدير او د لمر تلويزيون دعمومي اديتري دنده هم په غاړه لري.
د علم ګل سحر زياتې مقالې او مضمونونه د هيواد په دننه او بهر کې په جريدو او مجلو کې خپاره شويدي. دده شعرونه او داستانونه په هالنډي او انګليسي ژبو هم ژباړل شويدي.

دده د لا زياتو بريو په هيله.

وران نيازی

# مینه او جګړه

## یو رښتینی انځور

کله چې سړی د ښاغلي علم ګل سحر د شعراو ادب په کرونده ورګډیږي، نو په لومړي سرکې سحر د شاعر په توګه مطرح کیږي او (د لمر جنازه)، (د پاریال خوبونه) او (پاس سپوږمۍ ده ـ لاندې ته یې) شعري ټولګې یې مخې ته راځي. خو کله چې یو څو ګامه پر مخ پسې واخلي، نو بیا د (مینه او وسواس) په نامه د کیسو تالې او تختې هم ګوري. څه وخت چې د کروندې منځ ته ورسیږي، نو بیا هلته د (مینه او جګړه) په نامه د سحر یو داسې په زړه پورې ناول د سړي سترګوته دریږي چې، په هغه کې د مینې او جګړې د حالاتو ریښتینی انځور په ښکلي طرز کښل شوی دی.

علم ګل سحر نه یوازې په شخصي ژوند او له دوستانو سره په خوږو مجلسونو کې د مینې، محبت او صمیمیت سمبول دی. بلکې په شعر، لنډو کیسو او دغه راز دغه ناول کې یې هم دغه خوی او خوشبویي محسوسیږي. نو ځکه د شاعرانو او ادیبانو په منځ کې د مینې او ښکلا د مفسر او بیانوونکي شاعر په توګه پیژندل شوی دی.

موږ ددغه ناول په مرسته څو کاله مخکې د زرمت له حالاتو او له اړوندو پېښو سره بلدیږو او هلته یو فکري سفر کولی شو. موږ لیدای شو

چې. هلته ژوند په څه ډول حالاتو کې تیر شوی دی. موږ د دغه ناول په مرسته پوهیدای شو چې. هلته د پوځي استعداد ونو کمی نه، بلکې د سیاست پوهانو کمی دی. دغه ناول لوستونکي ته د هماغه دوران کړکیچن حالات ورښیي چې، ټولنه څنګه د ډول ډول بحرانونو په ژور او نه اټکل کېدونکي خړ او برګ حال کې غوټې وهي. دا ناول د زرمل د ریښتینو پیښویوه خوندوره نثري تابلو ده. تاسې وګورئ، ددې ناول ژبه څومره خوندوره ده:

« یوې الوتکې اور اخیستی و او لکه د برات په شپه د اور له لکړې څخه په تیلو او زرږو ککړه ټوټه په ځمکه ولویده.»

بیا څه ښه وایي:

« ملوك د توتو میلې نه وې لیدلې، خو په دې باره کې یې ډیرې کیسې اوریدلې وې. ده ته ویل شوي ول، چې په وطن کې په کومه ویاله کیني، نو مینځلې میوې په اوبو کې درته راځي. ملوك په همدغې مینه وطن ته راغلی و.»

کله چې زه د لیکوال د ناول په دغه تخته او تاله باندې په مینه مینه او خوند خوند وګرځیدم او په یوه او بله خوا مې ګز او ګام کړه او سوچ مې پرې وواهه، نو په دغه کیسه کې مې د خپل زړه خبرې وموندې. سحر مې یوځل بیا د یوه خوږ او صمیمي انسان، شاعر، ادیب او لیکوال په توګه مخې ته ودریده. پوره باور دی چې. دا کتاب به ډیر لوستونکي پیدا کړي او د یو زیات شمیر شاعرانو. لیکوالو او ادب پوهانو د مطالعې وړ کتاب او هغه د چا خبره. د خوب د کټ د سر کتاب به شي.

زموږ په خوږه پښتو ژبه کې د ناولونو او رومانونو ډېر کمی دی. ځکه ویلی شو چې. سحر د ادب په دغه مزله کې ډېرښه انتخاب کړی دی او دا کتاب د موضوعاتو له پلوه هم خوندوراو عام فهم دی. بله دا چې دا

ناول ځکه ښکلی ناول دی چې، زموږ د افغاني ټولنې ځانګړې کلتوري ځانګړتیاوې لري او د افغاني ټولنې د پښتني خصوصیاتو په رنګ او خوند رنګین دی.

ددې ناول د پېښو سیمه د زرمت سیمه ده او ورسره دشاوخوا سیمو د حالاتو اغېزهم لري. نو ځکه دا ناول دهماغه دوران دزرمل دسیمې دحالاتو هینداره بللی شو.

د اثرلیکوال موږ ته راښیي چې، مونږ باید د جګړې په ورانیو پټې سترګې تیرنه شو. دلته ډیر یادونه او کیسې ښخې اوکرل شوې دي. له دغو حالاتو یو سبق اخیستل په کار دی او دا کتاب له موږ او تاسو سره ددې هیواد د دوست او دښمن په پیژندنه کې هم ډیره مرسته کولی شي. څوک چې خپل یاران، دوستان او دښمنان ښه وپیژني، هغه په راتلونکي ژوند کې کامیابیدای هم شي.

د اثر د خاوند کامیابي په دې کې ده چې، هغه د جنګ په سختو حالاتوکې مینه ترسیم کړېده.

یوځای داسې لیکي: «د ملوك د ځوانۍ کیسود ګودرونو او تنورونو غاړې تودې ساتلې وې. چې هرچیرې به تیریده، پیغلو به له نیمکښو پلونو ځاره، نوځکه یې چندان پام ورو انه وښت!».

ددغه اثر څښتن په ناول کې ډیر ورو ورو د خپل قلم نوك کښ کاږي او ښه په احتیاط او تدبیر سره دا کارکوي. ځکه ریښتیني پیښې انځوروي او د ربښتینو پیښو انځور پوره احتیاط غواړي او دا د ناول یوه ډیره مهمه اړتیا او تاریخي ضرورت دی. که موږ وغواړو چې، خپل ادب له نړیوال ادب سره ونښلوو. نوپه کار داده چې، دغه ادبي جریانونه وڅیړو او بیا لیکنه پرې وکړو.

لنډه دا چې،

دا ناول په اصل کې یوې داسې سړې اویخې بسترې ته ورته اثر دی چې، سړی پکې ننوزي او هرڅومره چې ځان ګرموي چې خوب ورشي. نه ګرمیږي، ان بېخي یې ګبنهی نیسي او خوب یې تښتوي.

په ډیرادب

**محمد نبي صلاحي**

# لومړۍ څپرکی

خپل کلاشنکوف یې د سینځلې له ونې سره ودراوو، پخپله د رود په غاړه په ډبره کیناست، مخ ته یې دوه لپې اوبه واچولې په اوبوکې یې لاس ټیټ کړ شګې او وړې ډبرې یې را واخیستې بیرته یې د اوبوپه منځ کې وشیندلې، کبانو یوې بلې خواته منډې کړې.

ملوك له ځایه را ولاړ شو له رود څخه د جلا شوې ویالې له غاړې یې څو ډکې شنشوبې راوشکول. بیرته په هماغه ځای کیناست، شنشوبې یې په اوبوکې ووهل، خوله یې له اوبو ډکه کړه اوبه یې بیرته څنګ ته وپاشلې. د شنشوبې یو ډکی یې راپرې کړ د خپلو غاښونو په پاکولو لګیا شو. په خوله یې اوبه تیرې کړې.

له جیبه یې په مریو جوړه هنداره راویسته. خپل غاښونه یې پکې ولیدل د هنداري د مریوپه ننداره بوخت شو بیرته یې جیب ته واچوله د جیب په کښتنې برخه یې بیا لاس وواهه چې د هینداري له ځای په ځای کیدلو ځان ډاډه کړي. سوړ اسویلی یې له خولې ویوست یولاس یې موټی کړ او خپل تندی یې پرې تکیه کړ.

د مجاهدینو د خندا غږ یې د چرتونو لړۍ وشلوله د هغوی خواته یې وکتل. سر یې وښوراوو بیرته یې په زنګنو کیښود.

په ناستو کسانو کې یوه هغه بل چې د خپل کلاشینکوف په

نښانځای یې لوبې کولې په مټ کیکش، چې هغه وروکتل نو په سترګو یې د ملوك خواته اشاره وکړه چې معنی یې داوه:

ـ ده ته ګوره ښنګه په چورتوکې ډوب دی.

هغه ورته وویل:

ـ ملوك نن ډیرخپه معلومیږي لکه چې خپله پیغله کوژدنه یې یادیږي. بیا یې دا بل ته مخ وروااړاوو:

ـ که ښنګه انوره زه چې ورته ګورم ښوچې قوه رارسیږي دی به د خسر کره رانه تښتیدلې وي.

ټولو وخندل:

انور په تائید وویل:

ـ والله نن یې خونده نشته، زوی یې مړکې چې دا ولې؟

شیرمحمد خپل ښنګ ته په خاورو کې نسوار توکړل وې ویل:

ـ که ریښتیا ووایم په موږ او تاسي کې خو اصلي جنګ ده کاوه خو اوس داسې معلومیږي چې دشپېتو بریښو ورځ په ورځ کمی دی، لکه چې دده هم نن....

دُرمحمد یې خبره غوڅه کړه:

ـ نه داسې مه وایه ملوك خونام خدای زمری دی زمری نه دې دي اوریدلي چې وایي:

تـــوره بـــه هغـــه ســـړی وکـــړي
چې یا مین وي یا یې پېغله ناسته وینه

دی هم مین دی او هم یې پیغله ناسته ده چې یو وارې قوه را ورسیږی ته یې بیا ګوره.

د لوی دولتي کتار د راتلو آوازه په یوه ورځ کې په ټوله زرمله کې خوره شوه. دې آوازې د سیمې خلك وارخطا کړي ول. له سرك سره نږدې د

کلیوخلکو د غره لمنو او یا لرې کلیوته کډې وکړې، دوی یوازې څه کالي او د دوو دریو ورځوخرڅ ورسره اخیستی و.

ځینې په لرې پرتو کلیوکې د خپلو دوستانو کره ولاړل چاچې ځوك نه لرل په غره کې یې کډې واړولې.

اوس نو د سرك شاوخوا کلي ټول له خلکو تش شوي ول.

نه د کلیو په بامونو د بیرغونو په څیر هغه پخوانی لوګي په رپا ول، نه هم د کورونو او کلاوو مخې ته ماشومان لیدل کیدل چې په خاورو او پوټیوکې به یې لوبې کولې.

بس یواځې دسپو غپا وه ، چې کله کله به له کوم کورڅخه واوریدل شوه، هغه هم غپا نه وه یواځې یوه کوکاره به وه چې د کلي غمجنه څیره به یې لا پسې ډاروونکې کړه، تیره شپه خو مجاهدینو هم زړه ونه کړ چې کلي ته ولاړشي او د ورسپارل شویو مالونو او حیواناتو احوال واخلي.

که څه هم باد او دوړې نه وې خوپه کلیو یو خړ ګرز پروت و.

له سرك څخه په لرې کلیوکې هم د ژوند نښه نه ترسترګو کیدله.

مجاهدینو له پرونه راهیسې د سړك خوا ته د راده په ونو، او کلاوو کې ځایونه نیولي ول.

د ملوك دوی ۲۵ کسیزې ډلې هم شپه د سړك په غاړه کلا کې چې یو وخت د کلي ښوونځی و تیره کړې وه او سهار لمانځه مهال یې ځانونه د سړك له غاړې سره راده ((رود)) ته چې د سپیدارو، سنځلو شرنګونو او مینجرولو په ونو پټ وو را رسولي و.

عبدالقدوس چې پرون یې د دولتی کتار د راتلو خبر راوړی و ویلې و. چې فوځي کتار به نن له دې سیمې تیریږي.

تورن قدوس چې د نقلیی په کنډك کې افسر و. دوه درې میاشتې د مخه یې له مجاهدینوسره د جنت ګل. په وسیله ارتباط نیولی و تر اوسه

پوری یې ټول راپورونه ویښته په ویښته رښتیا ختلي ول.
نو چا د هغه په خبره اوراپور کې کوم شك نه کاوو. او دی به هم ددې لپاره چې غلط فهمي ونشي د راپورونو لپاره زیاتره پخپله سیمې ته راته.
دده دې جرأت ته ټول حیران ول، چې څنګه په دومره لنډ او تنګ وخت کې ځان را رسوي او بیرته ځي.
ملوك له نورو څخه لرې د دوو ونو ترمنځ د ویالې په غاړه ناست و. کلاشینکوف یې په خپلو زنګنو ایښې و.
د رښو اوبو په ننداره بوخت و، په اوبو کې کوچنیو کبانو یوې او بلې خواته منډې وهلې.
په هغو دووکبانو یې کینه راغله چې د اوبو په ژۍ کې د ونو تربیخ اوښتل راوښتل.
یوځل خویې یوه کوچنۍ ډبره راواخیسته چې هغه دوه کبان پرې وولي خو زړه یې پرې ونه شو، ډبره یې لاندې خواته په اوبو کې وویشتله کبانو یوې اوبلې خواته منډې کړې. ملوك سر په زنګنونو کیښود په بیګاني خوب بیا را وګرځید:
تیره شپه یې همدا ځای په خوب لید، کټ مټ همداسې رڼې اوبه په (رود) کې رواني وې. مجاهدین د دولتی کتار د راتلو لپاره راغونډ شوي ول، او لکه نن یې په شاوخوا کلاوو، کاریزونو او ونو کې سنګرونه نیولي ول. د مجاهدینو په منځ کې دده پلار شیرخان هم و.
خود پوځي کتار په ځای د روسانو الوتکې راغلې، لومړی بم یې د پلار ترڅنګ ولوید، کله چې د بم دوړې او لوګي ورك شول، پلار یې هلته نه و. د الوتکو دویم بم دده خواته ولګید، د لوګیو په منځ کې یې پلار ولید. چې ورته خاندي، دده په لوري یې لاسونه را اوږده کړل. ملوك هم غوښتل ځان ور ورسوي، ځان ته یې پام شو، دواړه پښې یې نه وې له

خولې یې چیغه ووتله. پلاریې هماغسې ورته خندل، شاوخوا توره تیاره وه، بل څوك نه معلومیدل.

یوې الوتکې اور اخیستې و، او لکه د برات په شپه د اور له لکړې څخه په تیلو او زرېو ککړه ټوټه په ځمکه ولویدله.

ملوك د پلار په لوري په سینه ښوئیده. پلاریې دده په لوري لاسونه نور هم اوږده کړل، خولا ډیر لرې معلومیدل.

د پلار لاسونه یې دده په خوا ورو ورو اوږدیدل، په توره تیاره کې دواړو لاسونو رڼا کوله، د وړانګو تنابونه شول، د ملوك په خوا را نږدې شول، له پاسه دوه نورې الوتکې راغلې، په دوی راتیټې شوې، خو ملوك په هماغو تنابونو کې ترې پورته شو د لوړو سپیدارو له سرونو یې لاندې وکتل، ملګري یې په وینو کې لت پت پراته ول، او ترڅنګ یې له یوې الوتکې لمبې پورته کیدلې.



شپږ کاله دمخه یې پلار همدلته د روسانو په بمباریو کې وژل شوی و.

په هغو ورځو کې ملوك له پاکستان څخه د خپل پلار او مور لیدو ته راغلی و.

پلاریې همدا یو زوی درلود. خپل زوی یې د جګړو په لومړیو کلونو کې د تعلیم په پلمه پاکستان ته لیږلی و، هلته په میرانشاه کې د ماچسو په کمپ کې د خپل پلار د خور په کور کې اوسیده، او د ورځې به یې په مدرسه کې درس وایه.

د ووړې تودې ورځې وې ملوك خپل د ترورله ځوی سره چې هر ووړی به جهاد ته راته راغلی و هلته یې اوریدلي و. چې اوس به په وطن کې

توت پاخه شوي وي ده د توتو میلې نه وې لیدلې خو په دې باره کې یې ډیرې کیسې اوریدلې وې.

ده ته ویل شوي ول، چې په وطن کې په کومه ویاله کینې نو مینځلې میوې په اوبو کې درته راځي. په همدغه مینه وطن ته راغلی و.

خو له هغو میلو او خوښیو څخه یې چې پخوا یې لیدلې وې او یا نورو ورته په پاکستان کې په خوند خوند کیسې کړې وې، یوه هم ونه لیدله.

هره ورځ مرګ و، بمباري وې، وینې وې، ژړاوې وې، چې یوه ورځ به په یوه کور کې وې او بله ورځ به په بل کور کې.

نه په زیارتونو د هغو مستو پیغلو میلې ولاړې وې او نه هم په ودونو کې هغه سازونه ډولونه او سانګې، نه هم پخوانۍ پیغلې وې چې په شرنګ به مازدیګر د ګودر په لوري روانې وې، په کلیو کې یو نیم کور پاتې وو نور ټول مهاجر شوي ول، اوس له هر ځوان سره کلاشینکوف و، د هریوه په څیره کې یوازې غوصه او کرکه وه.

ملوك له دې حالته په تنګ شوې و. پاکستان ته یې داسې سودا وه لکه چې خپل وطن یې وي، خو د ترورځوی ځاځي ځنډولی و.

مور او پلاریې هم ورته ویلي و چې د ګرمی یوه بله میاشت دې هم دلته تیره کړي.

د دوبي اوږدې ورځې په ملوك لاهم اوږدې تیریدلې. د هرې ورځې حساب یې نیو، په دې هیله چې ژر تیرې شي او بیرته داسې سیمې ته ولاړشي چې پکې له غمه خبرنه وي.

خود دوبي ددې اوږدو ورځو یوې غرمې یې ټولې پریکړې وربدلې کړې. وروسته له هغه یې ورځې نه بلکې د خمارې د لیدلو لپاره شپې شمیرلې په هغه ورځ ملوك د خپل ماما آغا محمد کلي ته تللی و. د غرمې

ډوډۍ يې هلته وخوړه، بیرته يې پخپل بایسکل پښه را واړوله. څه لاره لا نه وه. تللی چې بایسکل يې هوا کمه کړه. د پیرزوخیلو په کلي کې یې د وچ کاریز په غاړه تر ونو لاندې بایسکل ودراوو. د بایسکل د شا ټایر ته یې ژر ژر هوا ورکړه، چې را ولاړشو. د زړې کلا په بام یې سور سالو ولید. یوچا پټ پټ څاره. ملوك ته دا خبرې نوې نه وې. دده د ځوانۍ کیسو د ګودرونو او تنورونو غاړې تودې ساتلې وې، چې هرچیرې به تیرېده پیغلو به له نیمکښیو پلوونو څاره. نو ځکه یې چندان پام ور وانه ونښت.

ملوك له ونې لوړ غنمرنګه ځوان وو. ګډو وډو وروځو یې په تنده وړوکی شین خال کمرنګه کړې و. دا خال یې په کوچنیوالي کې د نظر لپاره ورته وهلی و.

ملوك پمپ په بایسکل کې ځای په ځای کړ. په کنجوغه یې غوټه بیا وکتله خدایزده څه یې په زړه کې وروګرځیدل پمپ یې بیرته را واخیست د هوا ورکولو کوچنۍ نلکۍ یې د بایسکل د مخې په ټایر کې بنده کړه. تر سترګو لاندې یې د کلا سر ته وکتل. بې واره یې له خولې ووتل:

په رنګ کلي کې د ګلو باغ؟

بایسکل ته په هوا ورکولو یې ځنډ وکړ. پایډل یې بې ضرورته تاوراتاو کړ ښه ځنډ یې په بایسکل ځان بوخت کړ. خوپه بام یې بیا څوك ونه لیدله. زړه نازړه را روان شو. څو ګامه وروسته یې په بایسکل پښه واړوله، چې له کلي راووت بایسکل یې ودراوو. شاته یې وکتل، د بایسکل مخه یې بیرته د کلي په خوا وګرځوله. څو شیبې ودریده. بیرته یې بایسکل راوګرځاوو.

ملوك ته نور شپې هم ورځې شوې وې. شپې یې د ورځې لپاره د هغې د لیدو په تمه روڼولې او ورځې یې هم د شپې د خوږو سوچونو لپاره

لنډولې له یو عجیب حالت سره مخ و. له مور نه یې د هغې خبرې د بیا اوریدو په تمه و. چې د خپل راتګ په لومړیو ورځو کې یې ورته ویلی و:

- زویه ښه شو چې راغلې اتې به دې یوجای پښه دربندوو د مور هم دغه یو ارمان دی. خو جنکۍ مې نه خوښیږي.

مور او پلار یې د ژوند چارو دومره بوخت کړي ول. چې بیا یې دا خبره په خوله هم رانه وړه.

ملوك د خپل زړه حال خپلې خور ته ویلې و. خور یې مخکې له دې چې دا خبره مور او پلار ته ورسوي یوه ورځ په یوه پلمه د (خمارې) کره تللې وه نجلۍ یې لیدلې وه. او بیا یې مور او پلار هم په دې رضا کړي ول. ځکه خوبه یې خور دا ټپه په ودونوکې ډیره ویله:

دا د ملوك تنۍ مې غورځي

ترخدای مې جارکې د کوزدې آواز یې ګرځي

د ملوك د ژوند ترټولو دخوښۍ شپې ورځې رارسیدلې وې. چې له لرې به یې د خپل کلي خواته د ټوپك ډ ز ترغوږ شو په خوشحالۍ به کورته راغی.

خو دا خوښۍ یې هغو برګو الوتکو یووړه چې یوه ورځ یې د دوی په کلي غوټه وکړه. هلته یې بمونه وانه چول خو ډاروونکي غږ یې د ملوك زړه واچاوو.

الوتکې ددوی له کلي تیرې شوې. چیرې لرې یې بمونه غورځارکړل. ملوك د بام سرته وخوت، چې ویې ویني خو مور یې پرې منت وکړ او بیرته یې له بامه راکوز کړ پلار یې له پرونه راهیسې نه وراغلی.

الوتکې بیا ددوی پر سر تیرې شوې دا ځل یې د بمونو غږ ددوی کلی هم ولړزاوو. برګې غوا یې پړی پرې کړاو په منډه ستورګې (ګُنبدې) ته ننوتله مور یې قرآن کریم په زړه پورې ټینګ نیولی و

د ماسپښین خوا ته چا احوال راوړ چې یوه الوتکه مجاهدینو ویشتلې او په غره کې رانسکوره شوې ده.

ملوك ددې خبرې په اورېدو خوشحاله شو. خپله برګه غوا یې چې د برګو الوتکو له ویرې په ګنبد ه ننوتې وه، بېرته په خپل موروي (میوګي) وتړله.

خو ده دا خوشحالي ډېره لنډه وه، ځو شپې وروسته یې د پلار کټ د کور مخې ته کېښود ل شو.

د پلار له مرګه وروسته ملوك پخپل کورکې یوازې له خپلې مور سره پاتې شو. مشره خور یې لا ځو کالو پخوا واده شوې وه. له جګړو وروسته یې بیا هغه نه وه لیدلې، ویل کېدل چې په کابل کې اوسي او خاوند یې په حکومت کې وظیفه لري.

پلار یې ځو ځله لیك وراستولی و، چې کابل پرېږده او ټوله کورنۍ راشي. خو زوم یې په ځواب کې ورته لیکلي وو، چې دوی دې کلی پرېږدي او کابل ته دې راشي.

له هغه وروسته یې له دوی هیڅ احوال نه درلود.

دویمه خور یې هم یو کال د مخه واده شوې وه چې کله کله به ددوی لیدو ته راتله.

ملوك د پلار له مرګه وروسته د هغه ټوپك واخیست او له مجاهدینو سره یوځای شو. په لومړیو ورځو کې یې مور نه پرېښود چې جنګ ته ولاړ شي، خو ده ویلي وو، ترڅو چې یو روسی په وطن کې وي ټوپك به له لاسه نه غورځوي.

له هغه وروسته ملوك د روسانو په خلاف په ټولو جګړو کې حاضر و او تر ټولو د مخه به جګړې ته روان و.

تېر کال مني یې مور او ماما (خماره) ورته په نام کړه ملوك به

کله کله په شپه کې د هغې کور ته ورته او سهار به له لمانځه د مخه خپل کلي ته راته.

د (خمارې) پلار په اول سرکې وعده کړې وه چې واده به ژر ورکوي. خو ملوك د ولور پیسې نه لرلې ځکه تراوسه واده ځنډیدلی و.



ملوك د نورو مجاهدینو خواته ورغی. د مجاهدینو مجلس داسې تود و لکه د ساړه ژمي د ګرم تناره غاړې ته چې ناست وي.

د قوماندان هاشم په لیدو ټول له ځایونو راولاړشول.

شین ګل په خوښۍ وویل:

ـ دادی زمری راغی نور نو چُرت مه خرابوئ.

محمد هاشم چې له ونې ټیټ او غنم رنګه سړی و، سترګې یې وړې او غټه خو جګه پوزه یې لرله. د مخې لاندې دوه غاښونه یې دومره یوله بله لرې و. چې نوي لیدونکي حتمًا فکر کاوه چې د دووغاښونو ترمینځ یې یو غاښ لویدلی دی نری اوږد مخ یې نری څوکړې ږیرې نور هم پسې اوږد کړې و.

ده پوځي زده کړې نلرلې. خو په جګړه پوهیده. په زیاترو جګړو کې به په لومړۍ لیکه کې ولاړ و. که به په وه شو چې په کومه جګړه کې کامیابیدای نشي نو په هوښیاري سره به یې له سیمې په شاتګ کاوه. او دا په شاتګ به یې داسې و. چې هیڅوك به نه وربانده پوهیدل. ددښمن د کمزوري ځایونه ښه ورته معلومیدل.

ده به ویل

ـ څوك چې خپل دښمن وپیژني هغه کامیابیدای شي.

کله به چې ددښمن په کمزوري وپوهیده. بیا به یې د خپلو کسانو

ستړیا ته هم نه کتل. پرله پسې جګړې به یې کولې او تر هغو به جنګیده چې بریالی به شو.

سموت به دده په هکله ویل:

ـ هاشم خدای پیدا کړی دقوماندانۍ لپاره دی. دی آن په کوچنیوالي کې د خپلو همزولو قوماندان و. په ماشومتوب کې به یې هم د هغو ماشومانو او خپلو همزولو مشري کوله چې د نورو باغونو او پالیزونو ته به په شپه یا ټکنده غرمه کې ورواوښتل.

یوه ورځ په کلي کې دی او اته کسه نور د خان محمد باغ ته ور واوښتل، له شنو مڼو یې لمنې راډکې کړې خو خان محمد پرې خبر شو له لرې یې پرې نارې کړې.

هاشم چې د ونې سرته ختلی و. له ونې یې ځان را غورځار کړ، پښه یې واوښتله.

د خان محمد پرله پسې چیغو ټول هلکان وارخطا کړل. هلکان له مخې او خان محمد له شا منډې پسې وهلې، د هاشم هم پښه خوږ شوې وه. منډې یې نشوای وهلای خان محمد ډیر ورته نږدې شوی و. خو هاشم هلکانو ته د تیت او پرك کیدو قومانده ورکړه. یو په یوه او بل په بله ولاړل. خان محمد حیران شو. چې په کوم یوه پسې ولاړشي. اودوي په هغه ورځ د هاشم له برکته له لوی خطره خلاص شو. او بیا به وروسته له هغه چې د خلکو باغونو او پالیزونو ته ورواوښتل هاشم به یې مشرو.

دغه کیسه سموت چې د هاشم همزولی او نږدې ملګری و. دا نورو مجاهدینو ته چې زیاتره نوي ځوانان ول. وکړه. سموت دا هم وویل چې په اصل کې هاشم له هغه وخته ددوی قوماندان و.

خو هغه وخت یې د قوماندانۍ چندانې خونده نه وه. ځکه نه وسلې وې نه پیسې.

اوس د قوماندان هاشم په راتګ ټول خوشحاله شول.

پرون یې سره ویلی ول چې قوماندان به د سړك په بله غاړه کلا کې له نورو مجاهدینو سره یوځای مورچل نیسي. خو اوس هغه ځای بلې ډلې نیولی و.

هاشم ټولو ته خپل خپل ځایونه وښودل. او د لومړي ډز علامه یې هم وټاکله.

ټول په خپلو ځایونو کې ځای پرځای شول، سموت یې په رود (راډه) کې د مجاهدینو قوماندان وټاکه او پخپله د سړك خواته د برجورې کلا په لوري وخوځیده.

سموت [1] له ونې لوړ او له رنګه تور و، ږیره یې خرییله خو اوږده بریتونه به یې تل په خوله کې پراته و. په خبروکې به یې د ((مطلب)) او ((پوه شوې که پوه نشوې)) تکیه کلام دومره زیات وایه چې زیاتره وخت به یې اصلي خبره په تکیه کلام کې ورکه شوه.

قوماندان هاشم به چې کله دده له ټوکو او کنایو په تنګ شو په قهر به یې ورته وویل:

- بریتونه دي د خلقي دي والله که څوك خیر درنه ووینې.

خوده به په بریتونو لاس راتیرکړ. یوه بله ټوکه به یې هم وکړه او په خندا به له کوټې ووت.

سموت په ګروپ کې په ټوکي مشهور و.

له هرې خبرې سره به یې متل تیراوو، یا به یې خپله خبره په کوم شعر یا لنډۍ ثابتوله. ده به خپل زیاتره له ځانه جوړ شوي شعرونه او آن متلونه او لنډۍ په رحمان بابا پورې تړلې.

---

[1] ـ سموت چې اصلي نوم یې عصمت الله و. خو خلکو به سموت باله د هاشم د کوچنیوالي ملګری و

مثلاً ویل به یې: رحما با با څه ښه ویلي دي:

مینه په تلوراتلو زیاتیږي

کله راځه کله به زه درځم مینه

یا به یې ویل رحمان با با وایی:

چې نه یې وي سړي نه دې قورت خوري نه غوړي

څوک چې پوهیدل چې شعر او لنډۍ رحمان با با نه دي ویلي تر نورو به یې زیات خندل.

خو نورو نالوستو کسانو ته به دده هره خبره د کاڼي کرښه معلومیدله، ډیرو سموت د قوماندان مټ باله.

په حوزه کې ډیرې شخړې او لانجې به همده هوارولې. که به څوک له قوماندان هاشم نه خوابدي شول او بل ګروپ ته به تلل سموت به په خو خبرو بیرته راګرځاوو.

ځینو سموت صادق او له زړه پاك سړی باله. خو مخالفینو به یې ویل چې هغه په عین سادګي کې مطلبی سړی دی. دده د خبرو تکیه کلام ((مطلب)) او ((پوه شوې که پوه نشوې)) هم یو ډول کنایه ده. او دده د زړه خبره ده. خو څوك نه پرې پوهیږي. سموت هرځای خپل مطلب چلوي.



له پاسه دوړې ښکاره شوې.

پوځي کتار ورو ورو د دوی په لوري رانږدې کیده. مخکښني درې زرهپوشونه په بیړه رارِوان و نور کاروان ځای په ځای ولاړو

زرهپوشونه ددوی خواته راورسیدل.

سموت ناري کړې. د بریژنف کلوشې خو را ورسیدې بیا یې ملوك ته چې په ویاله کې یې ده ته نږدې مورچل نیولی وو مخ واړاو څنګه د تره زو ولې یې که نه ؟

ملوك په خپله خوله لاس كيښود په اشاره يې پوه كړ چې څه ونه وايي.

زرهپوشونه له دوی تيرشول.

سموت بيا په خندا وويل: د بريژنيف كلوشې لكه چې سپكې وې پوه شوې كه پوه نشوې مطلب، په ماين خو وانه لوتې؟

يو زرهپوش په مخ ولاړ تركليو پټ شو، بل زرهپوش د هغه زيارت څنګ ته ودريده چې يو وخت به په اخترونوكې پرې د ښځو ميله جوړيدله. څو كسه ژر ژر كوز شول او د سړك خواته د ديواله شاته يې ځانونه پټ كړل.

د كتار پاتې ټانګونو او زرهپوشونو هم ددوی په لوري حركت راوكړ.

د كاروان دويم ټانګ ماين والوزاوه.

توري لوخړې جوړې شوې. له دې سره له هرې خوا د توغنديو او سپكو وسلو دكاړتوسو باران جوړ شو.

د ماين وهلي ټانك ترڅنګ زرهپوش اور واخيست. پوځي كاروان ځای پرځای ودريده. عسكرو او افسرانو د سرك يوې او بلې خواته ځانونه پټ كړل.

ټانګونو او زرهپوشونو هرې خواته ګولۍ اورولې د كتار په پای كې يوبل زرهپوش هم اور واخيست له زرهپوش څخه پورته څو ټانګونه او زرهپوشونه د شا په لوري وتښتيدل. نوره قوا د سوځيدلو ټانكونو ترمنځ را ايساره وه.

په قوا كې عجيبه غوغا ګډه وه مخكښنې زرهپوش هم وتښتيده. په منځ كې ايسارو پاتې عسكرو يوې اوبلې خواته منډې كړې.

دوو كسو د راده په لوري مخامخ منډه واخيسته خو له دوو خواو د

ګولیو باران پرې جوړ شو. دواړه ځای په ځای ولویدل.

د سړك د غاړې په شیله کې پټو عسکرو جګړه نه کوله بس هسې یې ځانونه پټول. ښایي نه پوهیدل کومې خواته او په چا ډزې وکړي. یوه ګډوډي جوړه وه له هرې خوا ګولۍ اوریدلې.

خو دا ګډوډي هغه وخت نوره هم زیاته شوه چې د سوځیدلي زرهپوش ترڅنګ په کارتوسو او وسلو بار موټر اور واخیست.

له موټر څخه د سپکو او درندو وسلو ګولۍ هرې خواته بادیدلې.

له دې سره دوو نورو ټانګونو هم اور واخیست، د نږدې برجه ورې کلا مخې ته دوچې رشقي کوټې اور واخیست، یوه ګولۍ د ملوك پر سر په ونه ولګیده دونې ښاخونه دده خواته را ولویدل او ګولۍ په پټیو کې ولویده.

عسکرو یوې او بلې خواته منډې وهلې خو چې څو ګامه به لا نه وو تللي له یوې خوا به ګولۍ پرې ولګیدله.

دلته په ویاله کې د سموت له خولې چیغه ووتله، ملوك چې وروکتل ترڅنګ یې شیرمحمد پروت و، د هغه تر ککرۍ کارتوس پورېووړې وتلی و. ورنږدې شو، په غیږ کې یې راپورته کړ بیرته یې ورو پخپل ځای پریښود. او بیایې په ډزو پیل وکړ، درې کسه چې پوځي دریشي یې اغوستې وې د اصل الدین د باغ په لوري په منډو ول.

د ویالې له خوا ډزې پرې وشوې درې واړه په وچ ډګر پرېوتل. څو شیبې وروسته بیرته پورته شول تر ویالې یې ځانونه ورسول. هلته پټ شول. یوتن یې بیا د باغ په لوري منډه واخیسته له بلې خوا په پښه ولګیده ځای پرځای پریووت.

نورو دوو تنو لاره بدله کړه، له لوی درك [۱] سره نږدې دواړه له ویالې راوختل او د حاجی لونګ د کلا په لوري یې منډه کړه.

د سړك په غاړه دوه کسه چې د زرهپوش تر شاه په ویاله کې پټ ول، راپورته شول. لاسونه یې پورته نیولی ول، چیغې یې وهلې خوغږ یې ښه نه اوریدل کیده.

شاوخوا ورته ګولۍ ولګیدلې، ځای پرځای ثملاستل، چې دزې غلې شوې لاسونه یې پورته ونیول د راده په خوایې رامنډه کړه.

یوه یې د ویالې په غاړه د ازغوپه منځ کې ځان پټ کړ.

او دا بل یې په لویه ویاله کې ولویده.

ملوك لاس ورکړ او له اوبو یې راویوست.

سموت ورته وویل:

- وینې مطلب اوس ایله بیله بنیادم شوې.

ملوك په منت ورته وویل:

- سموته ته هرځای له خپلو اپلتو نه اوړې.

سرتیري چې ساه یې بنده بنده کیده، وویل:

- مه مه کوئ . ډزونه بس کړئ، څوك چې ژوندي دي ټول تسلیمیږي مور ته ....

خبره یې انور په خوله کې وروچه کړه :

- بس د سپي زو خبرې هم لا ته کوې او له دې سره یې سرتیری تر ستوني ونیو خو ملوك ورباندې منت وکړ.

انور وغوریده:

- ټول پټی یې وخوړ ته یې لا مړه بولې، که زما منې وینه یې ځمکې ته مه پریږده.

---

[۱] . درك : یولوی لرګی دی. چې د اوبو د ویش لپاره په دوو برخو ویشل شوی او د دوو ویالو په سرکې ایښودل کیږی چې دوو سیمو ته اوبه برې ویشل کیږی

درود (راده) له خوا ډزې غلې شوې دسرك له غاړې يوتن چې لاسونه يې پورته نيولي ول ددوی لوري ته رامنډه کړه . خو د شا له خوا په ګولۍ ولګيده او ځای په ځای ولويده .

يوبل له ټانګ نه ځان واچاوو او مخامخ يې د جيبه په لوري منډه کړه. له هرې خو اپرې دکاړتوسو باران جوړ شو. هغه د ونو په منځ کې ولويده او دا نورو هم ورپسې منډه کړه. خو ځو ګامه لانه وو تللي چې ځای پرځای ولويدل.

اوس نو يوازې له يوه ټانګ نه ډزې کيدلې.

ملوك او درمحمد ورورو ځانونه ټانك ته نژدې کړل.

ځو شيبې وروسته له ټانك څخه لمبې آسمان ته پورته شوې.

دوه کسه په ونوکې پټ ول. د جيبي له بلې غاړې پورې وتل. له کوچنۍ کلا څخه پرې ډزې وشوې. خو لکه چې ورونه رسيدل. دواړه د ختيځ په لوري په منډو شول.



# دویم څپرکی

بریالي او ګل مرجان د کلا دروازه ځنځیر کړه. بریالی د کلا دننه له دروازې سره نږدې کوټې ته ننووت او ګل مرجان په یوه منډه د کلا په کونج کې د بام زینو ته ځان ورساوه.

تر زینو لاندې یې د تراکتور زوړ ټایر په دوارو لاسو پورې واهه او هلته ځای په ځای کیناست. شاوخوا یې وڅارله.

د کوټې له ماتې کړکۍ څخه دبریالي په اشاره یوه شو زړه نازړه په زینو پورته شو چې د بام سرته ورسیده شاوخوا یې وکتل د پټیدو ځای یې تر سترګو نه شو په پورتنۍ زینه کې غلی کیناست. له لاندې نه بریالي ورباندې غږ وکړ:

- برج ته ځان ورسوه بې غیرته برج ته.

ګل مرجان د بام په سر نظر وزغلاوو. برج د یو په بل پسې د قطار بامونو په پای کې د کلا په بل کونج کې ول.

ګل مرجان له ځان سره فکر وکړ:

- عجیب سړی دی فکر کوي چې اوس هم قوماندان یم دا غوبې نه پوهیږي چې د کلا تر بل کونج پورې قطار بامونه له څومره خطره ډک دي بس په پل صراط تیریدل دي. که پدې کوټو کې یو کس وي بیا؟

خو چې خپل ځای ته یې وکتل تر بامونو هم خطرناک ورته ښکاره شو ځانته یې خندا راغله.

له ځایه راپورته شو په بام یې منډه واخیسته د دریم بام په سر یوې نسبتًا لوړې مورې ته یې ځان ورساوو څو شیبې د مورې کنیاست ترڅنګ د کلا منځ یې تر نظر تیر کړ په یوه منډه یې ځان برج ته ورساوو.

بریالی د کاهدانې بام ته پورته شو د کلا له دیواله یې شاوخوا وڅارله په سرك د فوځي کاروان له ځینو وسایطو لوګې پورته کیدل او رنه یوازې په وسایطو نه بلیدل بلکې شاوخوا په نورو ځایونو کې هم لوګي او لمبې تر سترګو کیدلې د دوی ترڅنګ په کوچنۍ کلا کې هم اوربل و. او لوګي یې هواته پورته کیدل.

بریالې چې په زینو ښکته کیده ګل مرجان ته یې غږ کړ:

ـ ډزې به نه کوې، زه هم درځمه.

بریالی د کلا په کوټو کې داسې په سره سینه ګرځیده لکه چې خپل کور یې وي او له اوږدې مسافرې وروسته بیرته ورته راغلی وي.

په دالان کې یې د تناره سرپوش ایسته کړ تنور تود و یو تور خیرن چای جوش په ایروکې خښ شوی و. داسې معلومیده چې د کور خاوندان به څو ساعته د مخه له کوره وتلي وي.

د کلا په دیوال دوه کوترې ناستې و ، سرونه یې له ویرې جګ نیولي ول غومبریې نه واهه.

بریالي د کلاشنکوف د میل په څوکه د بلې کوټې قلف والوزاوو. په کوټه کې یولوی صندوق ایښی و چې دواړو زلفیوته یې قلفان پراته و.

توشکې هوارې وې څوبالښتونه له خپلو ځایونو بې ځایه شوي. او د توشکو په منځ منځ پراته ول.

په کونج کې بستره بند خلاص شوی و. دوه بړستنې قات په قات پکې ایښې وې. پورته په تاخچه کې له سنبو (وړیو) څخه اوبدل شوی سور دسترخوان ایښی و.

بریالی موسکې شو ژر ژر یې پرانیست ډوډۍ پکې نه وه، یوائې څو دانې اتامونه (دډوډۍ کوچنۍ ټوټې) پکې پراته ول.

بریالي یوموټی ترې ډك کړ ژر یې خولې ته واچول پاتې دوه موټي یې په جیب کې واچول.

نورې کوټې یې هم یوپه بل پسې وکتلې په بیره بام ته وخوت له زینو سره نږدې دیوال څخه یې سر هسك کړ شاوخوا یې وڅارله او برج ته ورغی.

ګل مرجان یوه کونج ته غلی ناست و.

بریالي په ټوکه ورته وویل:

ـ څنګه ناست یې با میمله یې.

چې ګل مرجان څه ونه ویل زیاته یې کړه:

ـ دکافر په کورکې یوټوك مړۍ هم نه پیداکیږي.

ګل مرجان وخندل:

ـ زړه دې دی چې وریجې او غوښې یې درته باندې کړې وای؟

ـ دکور اوسیدونکي نوي وتلي دي په کورکې هرڅه شته خو ډوډۍ نشته.

ـ دایې لا بله بدبختي.

ګل مرجان دا وویل او سر یې په زنګانه کیښود.

بیرته یې سر راپورته کړ په اسویلي یې وویل:

ـ لکه چې بې ځایه مړه شووها.

بریالي ښکته پورته ورته وکتل:

ـ مرګ مرګ دی څه په ځای څه بې ځایه په هر صورت اوس خو ورسره مخامخ یو. چې مخامخ یو بې غیرتي به نه کوو.

کلاشنکوف یې په ځمکه کیښود پسې زیاته یې کړه:

ـ حقيقت دادی چې دلته هيڅوك هم په ځای نه مري.

ګل مرجان ورته وکتل بيرته يې سر ښکته واچاوو.

بريالي يې په سترګو کې د مايوسي اندازه ولګوله.

ده ګل مرجان ښه پېژاند هغه د لوا په ميکانيزه غونډ کې د ټولي مرستيال و په ټولو دندوکې حاضرو، بريالي به سختو جبهو ته دی استاوو.

بريالی له ځايه ولاړشو له کړکۍ څخه يې شاوخوا وڅارله، د کاروان ټانګونه او زرهپوشونه هماغسې سوځېدل او مجاهدينو ډزې پرې کولې.

بريالی په ټيټه ملا په برج کې ګرځېده برج دوه کړکۍ لرلې خو کړکۍ لا له لومړي سره نه وې پکې ايښودل شوې. داسې ښکارېده چې د کور خاوند په برج کې ازوغ او رشقه ايښوده ځکه د برج په غولي د وچې رشقې ميده ګبې او خځلې ليدل کيدې.

بريالی د ګل مرجان خوا ته راتير شو په مټ يې وټپاوو:

ـ ملګريه موورال بايللی راته ښکارې؟

ـ يره که رښتيا درته ووايم اولاد رښتيا ددين دښمن دی، کوچنی زوی مې ډير يادېږي، چې راتلم له غيږې مې نه ښکته کيده.

بريالي وخندل: دادی دوی هم د دين په دښمن پسې ګرځي.

د ګل مرجان سترګوته يې وکتل زياته يې کړه:

ـ غم مه کوه داسې مورچل مو پيدا کړی دی چې ضياء الحق هم راشي يوه مياشت خومو نه شي ترې پاڅولی.

ګل مرجان ښکته پورته ورته وکتل. په زړه کې يې غوصه ورته راغله له ځانه سره يې وويل:

ـ داوګوره په دا خپله د خرس غونډې ځواني مين دې له دنيا ناخبره دی اوس هم زړې کنجاړې په خوب ويني ښه يې وليدل چې ټول

تباه شول او دی بیرته له سره لګیادی رنګه شوې کلا آبادوی شیطان را ته وایی چې ته هم....

پخپل دې فکر ژر پښېمانه شو. بریالي ته یې چې له برج څخه د راوتلي تیر په سریې خپل غوښن لاسونه ایښي ول او د کلا له کنډو څخه یې شاوخوا ځارله وکتل. خوا یې ورته بده شوه.

په زړه کې یې وویل: جنګ دې ورك شي دا ښکلې ځواني خو د خاورو لایقه نه ده.

بیا یې د رود په غاړه د ونو په منځ کې د وژل شوي مجاهد څیره سترګو ته ودریده چې د ددوی په ګولۍ لګیدلی و. فکر یې وکړ:

ـ څه ښکلی ځوان و. د مرګ وړ خونه و. ریښتیا مور به څه کوو څوك وژنو. هی هی خپل ورور.

زړه یې و. خپل دا فکر له بریالي سره شریك کړي او ورته ووایې چې ترڅو به سره وژنو. ترڅو به د کورونو په ځای قبرونه جوړوو. راځه ور ووزو. مجاهدینو ته ووایو چې مونږ ستاسې ځامن او ورونه یو. دادی که مو وژنئ که مو پرېږدئ.

څو ځله یې په زړه کې راوګرځیدل چې د خپل زړه ټولې خبرې هغه ته وکړي.

خو بیرته به پښېمانه شو. هسې نه چې بریالی یې، بې غیرته وبولي او که ژوندې پاتې شي سبا پیغور ورنه کړي.

څوك څه پوهیږي که دا خبرې خاد ته وکړي او بیا یې زندان ته بوزي د نورو غونډې یې سترګې او لاسونه وروتړي او په پلیګون کې یې په ګولۍ وولي.

وروستۍ خبرې ټکان ورکړ. خو د بریالي تیر ژوند او کړووړو یې وروستۍ خبره ردوله.

ـ نه نه بریالی نامرده نه دی، په بل چا مې نه وژني. چې بد یې راشي همدلته مې وژني، خو بل چاته دا خبره هم نه کوي، توکل په خدای تهولې خبرې ورته کوم، دی به نه پوهیږي پخپله ځواني مغرور دی زه به....

د بریالي ناڅاپي غږ یې د سوچونو لړۍ وشلوله:

ـ امرصاحب تخنیك به دې نه وي لیدلی چې مړ به وي که ژوندی؟

ـ نه والله، امر اوپراسیون مې ولید بیچاره لکه چې شهید شوی دی.

ـ رېښتیا وایې؟

ـ پام مې نه دی کړی د زرهپوش خواته یو مړی پروت و، ممکن هغه به و، زه د خپل ځان په غم کې وم.

ـ هغه زما عسکرهم....

د الوتکو غږ یې ترغوږ شو خپله خبره یې پرېښودله: په خوښی یې چیغې کړې: هغه دی والله طیارې راغلې.

پورته یې وکتل، الوتکو له لوړې فضاء څو بمونه خوشې کړل یو بم په رود کې ولګیده پورته له ژرندو سره په دښته کې هم څوځایه دوړې او ګرځونه پورته شول.

الوتکې د سترګو په رپ کې الونیا شوې. بریالي په خوشحالي وویل:

ـ اوس نورې هم راځي.

ـ انشاء الله اوس یوڅه کیږي. که دا وار راغلې زه او ته هم ځانونه یوې خواته باسو.

خو په خبروکې یې پخوانی قوت نه لیدل کیده په سختی یې خپلې وچې شونډې خوځولې. ګل مرجان ته یې وویل:

ـ څنګه وږی خو به نه یې؟

ـ که رېښتیا درته ووایم اصلاً لوږې بې حاله کړی یم

بريالي جيب ته لاس کړ د وچې ډوډۍ يو موټی اتامونه يې په لپه کې ور واچول په موسکا يې وويل:

ـ دادي واخله. تور توتان تر تا قربان.

ګل مرجان په بيړه خولې ته واچول.

بريالي د ډوډۍ نورې ټوټې هم له جيبه راوايستلې نيم يې پخپله وخوړل او نيم نور يې ګل مرجان ته ورکړل، دواړه ورېي ول.

بريالي د ګل مرجان په اوږه لاس کېښود ويې ويل:

ـ غم مه کوه اوس به داسې ډوډۍ درته پخه کړم چې په کور کې به دې هم نه وي خوړلې، اوله دې سره د تناره خونې ته په ښکته شويو پټو زينو چې برج ته نږدې وې او تراوسه پورې يې نه وې ليدلې لاندې کوز شو.

د کندو سرپوټی يې ايسته کړ کندو له اوړو ډک و خوري (سنك) يې راواخيست په مالګه پسې وګرځيد پيدا يې نکړه ښه ډير اوړه يې لامده کړل، لږ يې را واخيستل وې ځکل بلمنګي نه و.

په نورو خونو کې په تبخي (تيغنه) پسې وګرځيد په سترګو نه ورغی، هك حيران ودريده که يې په تناره کې پخوي ټول به چکيده شي ځکه له يوې خوا خميره شوي نه ول، اوله بلې خوا يې کله ډوډۍ په تناره نه وه پخه کړې.

چې خپلې لوږې ته يې پام شو نو د کلا په کونج کې پراته بوټي او چاپکې يې راواخيستل او په تناره کې يې اور تيار کړ.

د اور خونه يې ټوله وپلټله اورلګيت يې پيدانه کړ ګل مرجان ته ورغی د اورلګيت پوښتنه يې ترې وکړه هغه هم نه درلود.

بېرته بيا په نورو کوټو راسم شو. ټولې کوټې يې وکتلې اورلګيت يې ونه موند.

دالان یې ورياد شو. ټول دالان یې وکوت آن د دالان. بازوان یې هم ترنظر تېرکړل خو اورلګیت یې ونه موند.

په نه هیلي برج ته پورته شو. ګل مرجان يوې ګوشې ته غلی ناست و. ځار یې هم نه کاوو.

د بريالي په لیدو له ځایه پاڅیده:

ـ پيدا دې کړ؟

ـ نه د کافر په کور کې یو اورلګیت هم نشته.

ـ نو اوس به څه کوو؟

ـ نه پوهېږم.

ـګل مرجان په خوښۍ وویل:

ـ بل چل به وکړو.

ـ څه به وکړو؟

ـ هغه په کونج کې دبوټو کوټه به درسام په مرمۍ وولو چې اورېې واخیست لږ اور به تري یوسو او په تناره کې به اوربل کړو.

ـ نه نه دا د نظامی تاکتیك له نظره غلط کاردی. زه او ته اوس په داسې موقعیت کې نه یوچې چاته خپل ځای وښیو اوس دوی ټول په چور لګیا دي له ما او تانه څوك خبر هم نه دي، چې لږ تیاره شوه ځانونه به يوې خواته وباسو.

ـ هغسې خو امکان لري طیارې بیا راشي. او په مونږ پسې یا نوره قوا یا هلیکوپټر راشي خو چای ناخورده جنګ نه میشه په دې وږي ګیډه خو دوه ګامه هم نه شو تلای.

بريالي دده خبروته غوږ نیولی و. خو سترګې یې په لرې کلاوو کې خښې کړې وې. وې ويل:

ـ زه وایم که دا دروازې د مخې جومات ته یو ولاړ شو په جومات کې

حتماً اورلګیت وي او په منډه یو اورلګیت راوړو. چې یوځل په ګیډه ماړه شوو بیا به ګورو.

ـ داخو دې والله که بده خبره کړې وي.

له ځایه پاڅیده ویې ویل:

ـ خدای دې وکړي چې جومات قلف نه وي.

ـ ساده دا کلی دی په کلي کې جومات ته څوك قلف نه اچوي. ژر ولاړشه بیرته په منډه راشه، که نه و. بیا هماغه ستا چل کوو.

ګل مرجان دروازه خلاصه کړه شاوخوایې وڅارله او بیا په بیړه روان شو.

بریالی د برج د کړکۍ ترخنګ کیناست شاوخوایې وکتله چوپه چوپتیا وه، د سرك خواته څوځایه لوګی معلومیدل خو دا معلومه نه وه چې د سوځیدلو وسایطو دي که په ونو او کورونوکې دي.

بریالي سوړ اسویلی له خولې وایست:

ـ اوه خدایه داڅه حال دی. دا ښایسته سیمه وګوره اودا لوګي دا مړي دا دا ....

خپله مور یې وریاده شوه. چې د خدای په امانې په وخت کې یې په مخ ښکل کړی و. او بیا یې اوبه پسې شیندلې وې او لکه چې د خپل زوی د جدایی طاقت یې نه درلود ځای په ځای کینستې وه.

خپل اولادونه یې وریادشول. وړوکې زوی یې د راتګ په وخت کې ورته ویلي و، ماته موټر راوړه. ماته موټرك. موټرك چې هیر دې نشي، په سترګوکې یې اوښکې راغلې

ژړیې پاکې کړې.

ـ د ګل مرجان خبرې وریادې شوې:

ـ یره که ریښتیا درته ووایم اولاد ریښتیا ددین دښمن دی. زوی مې ډیر

یادیږي، چې راتلم له غیږې مې نه ښکته کیده.
هغه ساعت ده هم غوښتل ورته ووایې چې څومره یې خپله مور او اولادونه یادیږي، ژړا ورغلې وه، مخ یې بلې خواته اړولی و ددې لپاره چې ګل مرجان زړه وانه چوي ورته ویلي یې و:
ـ غم مه کوه داسې مورچل مو پیدا کړی دی چې ضیاءالحق هم راشي یوه میاشت خو مونه شي ترې پاڅولی.
په زړه کې یې وویل چې داخل به ګل مرجان ته د زړه غوټه پرانیزي ورته وایې به چې ده ته هم دا حالت د زغملو وړنه دی دده له بدنه هم وینه ځي، شیدې نه ځي، دی هم اولادونه لري، کورلري، ژوند لري، له دې ټولو سره مینه لري خوله وطن سره هم هومره مینه لري.
دا حالت دی هم نه غواړي چې د خپل ورور وینه تویې کړي دوه وروڼه یې له ده څخه لرې په خپل کلي کې ول، هغوی هم مجاهدین ول، دده اصلي ځای بل ولایت و، خو څوك خبردي که یې وروڼه دلته راغلي وي او اوس له ده سره په جنګ وي څوك خبر دي که ده پخپله وژلي وي دا څوك ....
د سوچونو لړۍ یې د کلاشینکوفونو ضربه یې ړزو وشلوله.

# دريم څپرکی

ـ په منډه ځه د اوبو بلا در وګرځه، اوبه هم لا څښېـږي. انـور هغـه اسير چې رود کې يې په لپو لپو ژرژر اوبه څښلې په ولیو کې د ټوپـك پـه قنداغ وواهه، دا نورو ته يې مخ ورواړاوو.

ـ دا موځه د ابازوي دی، چې خلاص لاسونه ګرځي.

درمحمد ورته وویل:

ـ ډیرتړي و، خوامې ورته بده شوه.

ـ پريښې به دې و، چې له تندې مردار شوی وای.

درمحمد ځه ونه ویـل. يوبـل چې خولـه يـې لـه سنځلو ډکـه وه لـه شا راغږ کړ:

ـ که دې ډیره خواورته شنه وي، اوس به يې مردار کړم.

کلاشينکوف يې له اوږې راښکته کړ پسې زياته يې کړه:

ـ داخو دومره سخت کار نه دی. ثواب هم لري.

له دې سره يې کلاشنکوف د هغه په خوا ونیو. قيد يـې وواهـه يوبـل ته يې چې د بندي تر شا روان و وویل:

ـ مامدينه ته لږ لرې شه. نن مې اصواب (اعصاب) خراب دي هسې نه چې تا وولم دده ....

ماشې ته يې لا ګوته نه وه نږدې کړې چې ملوك له لرې ورباندې غږ کړ:

ـ اکبره څه کوې. څه کوې؟ لیونی شوی خو به نه یې؟

اکبر بدبد ورته وکتل

ـ د تاېې څه؟

ـ د چاپه امریې وژنې؟

ـ پخپل امر.

ـ ته دا حق نه لرې.

اکبر د کلاشنکوف قید په ضربه ودراوو ویې ویل:

ـ اوس به معلومه شي. اوله دي سره یې کلاشنکوف د بندي په لوري برابر کړ. درمحمد منځګړتوب وکړ:

ـ خدای موخوار که په دومره وړه خبره نږدې ده جنګ وکړئ.

اکبر چې له ډېره قاره یې د خولې له کونجونو ځګونه راوتلي ول وویل:

ـ تر اوسه به مې یا واژه یا نه اوس یې والله که پرېږدم چې اوه ساوې ولري.

شیر چې تراوسه غلی ولاړ و هم منځګړتوب وکړ وې ویل:

ـ ځه ورك یې که اوس یې پرېږده. یو وار یې مرکز ته ورسوو بیا به یې بل څوك نه وژني. ته به یې وژنې.

ـ اکبر وویل:

ـ نه یې پرېږدم

درمحمد په نصیحت وویل:

ـ وایم بیایې وروسته مړ کړه اوس یې پرېږده. د بندي خواته یې اشاره وکړه:

ـ هسې هم مړ دی رنګ یې نه ګورې؟

بندي زیړ زبېښلې ولاړ و. هېڅ یې هم نه ویل. نه یې زاري کولې نه یې هم د تیښتې هڅه.

دا نورو اسيرانو ته يې چې په سينه کې د يو پاڼ لاندې ولاړ وو په حسرت کتل

درمحمد د اکبرخوا ته رانږدې شو ويې ويل:

ـ ځان پوه که: قوماندان هاشم ويلي دي چې دا سې خلك باد له دې مه وژنئ ماته يې راولئ.

اکبر په کنايه وويل:

ـ ښه ښه اوس د خبرې په بيخ پوه سوم.

په روانيدو کې يې وويل:

ـ خير دنيا لا ختمه نه ده. سره ګورو به.

بندي نورهم د ملوك شاته پټ شو.

يوه بل بندي ته غږ کړ:

ـ راځه، له هغو نورو سپوسره دې ودرېږه.

بندي ملوك ته وويل:

ـ ډير وږی يم، لږ ډوډۍ موډۍ به نه وي؟

ملوك بدبد ورته وکتل چې مانايې دا وه: خاورې وخورې ډوډۍ هم لا غواړې چې يو وار دې هاشم ته ورولم بيابه سره ګورو.

يو بل مجاهد نظرالدين چې تراوسه پورې غلی ولاړ و د بندي خوا ته راغی په اوږو يې لاس ورووا هه. عسکري پليټونو ته يې چې په قلم يې رسم کړي و وکتل په ملنډو يې وويل:

ـ دا دې څه .... پې رسم کړی دی.

ـ پليټونه دي صاحب.

ـ دا بياتې او دا بل ټکی څه مانا ؟

ـ دا عسکري رتبه ده.

په غوصه يې ورته وويل:

- نوم دې څه دی؟
- خاورې ګل مرجان.
- هوم اوس خاورې شوې. تر اوسه چې په ټانګ کې سپور وې، خاورو ته خو دې کتل هم نه او اوس بیا خاورې شوې ها.
چې ګل مرجان څه ونه ویل، پسې زیاته یې کړه:
- خاوروته دې ډېر زړه کیږي، انشاء الله وتالی (تعالی) ژر به دې ور ولیږم پوشوې که نه؟
ګل مرجان ترشوندو لاندې وویل:
- څه چې خدای کوي هغسې به ....
ملوك د نوروخبرو مجال ورنه کړ، د کلاشنکوف په څوکه یې پورې واهه، او له نورو بندیانو سره یې چې لاسونه یې شاته تړل شوي ول، یوځای د مرکز په لوري روان کړ.
اسیرانو هریوه کوښښ کاوو چې له یوبل سره خبرې وکړي خو چې چا به څه وویل د کلاشنکوف قنداغ به یې خبره په خوله کې ور وچه کړه.
جګړن ګل مرجان چې د نورو ترشا روان و، ورو ورو یې ځان د اسیرانو منځ ته ورساوو سریې ښکته اچولې و. ورو یې وویل:
- بازید خانه، شفیق دې ونه لید؟
شفیق دده د خور یوازینې زوی و. چې لومړی د دوی په ټولي کې عسکر او بیا وروسته یې افسری رتبه ورکړې وه.
دایې لومړی ځل و. چې په یوه فوځي قطار کې له ده سره ملګری و.
بازید خان لکه چې دده خبره نه وي اوریدلې هیڅ یې ونه ویل ـ ده بیا پوښتنه وکړه هغه یوازې د ((نه)) ځواب ورکړ.
ګل مرجان فکر وکړ. زه خو ولاړم. خدای دې وکړي چې شفیق روغ خلاص شوی وي که هغه هم وژل شوی وي نوبیا؟

گل مرجان د اسيرانو په کتار کې ځان بل ځنګ ته ورساوو له يوه بل نه يې وپوښتل:

ـ امرصاحب شفيق به دې نه وي ليدلی؟

ـ شفيق څوک دی؟

د يوه وسله وال قهرجن غږ د ځواب مجال ورنه کړ:

ـ خبرې مه کوه رزيله لکه چې ځان رابانديې سموې.

د مازديگر سيوري راړنګ و، چې دوی يوې برجورې کلاته ورسيدل، ټول اسيران يې په يوه تياره کوټه کې چې يو وخت د وښو کوټه وه واچول دوه کسه په دروازه کې ودريدل چې اسيران پخپل منځ کې خبرې ونه کړي.

د غرمې په بمباري کې د مرکز پخوانۍ کلا بمبار شوې وه، د کلا يو برج وران و او نورې کوټې هم يا ورانې وې يا يې کړکۍ ماتې وې درې کسه مجاهدين چې دمرکز دساتلو لپاره پاتې ول، د بمباري په وخت له کلا وتلې ول، او د کلا خواته په زړو د کانونو کې اوسيدل.

ملوک اسيران په نورو وسپارل او پخپله له ملگرو سره خپل مرکز ته ولاړ.

دا مرکز هم په يوه کوچنۍ کلاکې و. په دې کلا کې هغه وسلې او مهمات ساتل کيدل چې له پاکستانه به په کچرو راوړل کيدل او بيا به ددوی د تنظيم نورو گروپونو او مرکزونو ته ويشل کيدل.

دا کلا د ګنو ونو په منځ کې وه. له يوې نيمې مياشتې را هيسې ملوک او شپږ کسه نور د وسلو د ساتلو لپاره دې کلاته راستول شوي ول.

ملوک او دولت خان به شپه او ورځ دلته و. د دولت خان پلار لا په اول کال حکومت وړی و.

ده بل ورور هم درلود چې اوس پنجاب ته د مزدوري لپاره تللی و.

دوی لا واړه و. چې مور یې د ملاریا په ناروغۍ مړه شوې وه. او دوی پلار ته پاتې شوي ول. پلار به یې د کور کار هم کاوو او چې کله به د باندې په کوم کار پسې ته، نو دواړه زامن به یې هم په شا ګرځول. د شپې به یې چې اوبه لګولې دواړه زامن به یې د پولې په سر په بړستن کې ویده کړل.

خو یوه ورځ یو جیپ موټر راغی د دوی پلار او درې نور کلیوال یې پکې واچول. بیا رانغلل.

دولت خان او دوست محمد تره ته ورپاتې شول، هغه رالوی کړل. دوست محمد پاکستان ته ولاړ او دولت خان په کلي کې پاتې شو.

دوست محمد بیا کلي ته رانغی خو چې پسرلی به له پاکستانه مسافر راتلل نو خپل ورور دولت خان ته به یې جامې واسکټ او څپلۍ او کله کله پیسې رالیږلې.

# څلورم څپرکی

د شپې په پخیدو سره د ډزو شدت لږ شو یوازې د شاو خوا کلاو څخه خال خال ډزې کیدلې.

بریالي د کلا شاوخوا وڅارله، د کاهدانۍ له بامه یې د کلا د دروازې مخه هم وکتله، چې ډاډه شو، د کلا شاوخوا څوك نشته ډزې یوازې دده د بوختولو لپاره کیږي، نو د کلا په کونج کې یې د ازوغ لـه انګاره څخه چې د مخه یې اور اخیستی و، یو سپکی (سوکی) راواخیست او په دیګدان کې یې اور بل کړ.

تبۍ (تیغنه) یې پرې کیښوده دې ته یې ونه کتل چې تبخی ګرم دې که نه. نامنظمه ذغاله یې جوړه کړه او په تیغنه (تبخی) یې واچوله، اور یې نور هم پسې زیات کړ ډوډۍ یې په بل مخ واړوله. بله نسبتاً غټه ډوډۍ یې په تبخی واچوله. نیم خامه ډوډۍ یې په تخرګ کې ونیوله اوپه یوه منډه د پټو زینو له لارې بام ته وخوت.

له برج څخه یې شاو خوا وڅارله. د کلاشینکوف قید یې وواهه او بې له دې چې وګوري یو ډز یې وکړ. کلاشینکوف یې لـه دیوال سره ودراوو پخپله د ډوډۍ په خوړلو لګیا شو.

ډوډۍ یې همدلته پریښوده لاندې ښکته شو د تیغنې پر سرله ډوډۍ څخه لوګي ختل هغه یې ترې ایسته کړه بله یې ژر پرې واچوله په بیړه یې

په یوه بله خوا واړوله. د کلا دیوال په ضربه یې ګولیو لګیده خودی داسې د ډوډۍ په پخولو لګیاو لکه چې هیڅ هم نه وي. له څاه څخه یې منګی را ډك کړ، د تناره د کوټې په کونج کې یې کیښود، د دیګدان رڼا ته یې د خپل کلاشنکوف مرمۍ وکتلې دوه رسام مرمۍ یې بیلې کړې په تاخچه کې یې کیښودې.

له تبخي څخه یې ډوډۍ چې یو لوری ته لږ سوځیدلې وه لرې کړه بله یې جوړه کړه او په تبخي یې واچوله.

د هاوان ګولۍ د کلا په منځ کې ولویده.

بریالي د کوچنیو ګولیو ترپا هم اوریده چې په انګړ کې لګیدلې. د اور په کوټه کې کونج ته غلې ودریده، د سپکو او درنو وسلو پرله پسې ډزو وارخطا کړ.

د شاژورونو چانټه یې غاړې ته واچوله، په زینو کې ورو ورو پورته شو، په وروستۍ زینه کې یې د برج په لوري هوایي ډز وکړ له دې سره یې په یوه منډه ځان برج ته ورساوو. د سهار رڼایي په خوریدو وه په برج کې یې د شاژورونو چانټه چې له ګل مرجان څخه پاتې شوې وه پیدا کړه او څنګ ته یې واچوله.

دغه وخت د توغندي ګولۍ د برج خواته د کلا په دیواله ولګیده. بریالي د کلا له بلې برخې څخه یوه ګولۍ فیر کړه او بیرته یې په منډه ځان برج ته ورساوو.

څوشیبې وروسته په هغه ځای راکټ ولګیده دیوال یې ویجاړ کړ بریالی پوه شو چې راکټچي نږدې ورته ناست دی خو نه یې شوای کولای چې سرپورته کړ بیا یې له ویجاړشوي ځای څخه مرمۍ فیر کړه او پخپله یې ځان برج ته ورساوو

د کلا ترڅنګ د باغچې د کوچني دیوال له شا بیا په هغه ځای د

راکټ ګولۍ ولګیده بریالي د باغچې دیوال په ننبه کړ. څو ډزونه یې هغې خواته وکړل. له ختیځ لوري په برج د توغندي دوه ګولۍ ولګیدې څو برسیرنې وې یوازې یې د برج له چت څخه خاورې او لوټې راتویې کړې.

بریالي له نږدې څخه دا غږ واوریده.

ـ د لیلن زامنو تسلیم شئ.

بریالي شاوخوا وکتل د غږ ځای یې ونه لید وې ویل:

ـ مرمۍ ډیرې لرو اوس خو تاسې یاست چې ټول پنجابیان هم درسره شي تسلیم به نشو.

له بلې خوا وربانديې غږ وشو:

ـ روس بادار دې څه ونه کړل تاسې به څه وکړئ ټول فوځ تباه شو ته بیا کوم سپی یې؟

بریالي څه ونه ویل، خپل ځای یې بدل کړ.

له بلې خوا بیا غږ وشو:

ـ تسلیم شئ هسې ځانونه مه تباه کوئ.

له دې سره د ډزوباران جوړشو، د هاوان یوه ګولۍ د بام پر سر ولګیده، یوه چره یې د بریالي په کینه پښه ولګیده له پښې یې وینې جاري شوې.

په بیړه د اور کوټې ته را ښکته شو، پښه یې په یوه زاړه ټوکر چې د تناره له څنګه پروت و وتړله او هلته ځای په ځای کیناست.

ډزو دوام درلود. بریالي له ځانه سره فکروکړ:

ـ ترڅو به جنګیږم. له کومې خوا د کمك درك هم نشته بیا یې سوړ اسویلی له خولې ووت له ځانه سره یې وویل:

ـ چاره څه ده؟

خپل اولادونه یې ورياد شول.

په سترګو کې یې اوښکې راغلې د ګولیو په باران کې یې برج ته ځان ورساوو ، خو برج د توغندیو ګولیو وران کړی و

بریالی د برج په کونج کې چې رالویدلو تیرانو او بازوانو پټ کړی و ، غلی کیناست.

په لوړ آواز یې وویل:

ـ ودریږئ ډزونه مه کوئ.

ورته نږدې کسانو ډزې بندې کړې. خو له نورو خواوو لا هماغسې ډزې کیدلې.

له هغې خوا آوازونه اوریدل کیدل، خو بریالی نه وربانده پوهیده چې څه وایی بیایې ورغږ کړ:

ـ که وعده کوئ چې وژنئ مو نه ، نو مونږ ټول تسلیمیږو ، خپله خبره یې بیا تکرار کړه.

ـ مونږ وعده کوو چې سر او مال مو په امن کې دی، بس دروازه خلاصه کړئ.

له نورو خواو هم ډزې بندې شوې بریالي د دروازې ځنځیر خلاص کړ، د دروازې یوه پله یې خلاصه پریښودله. د دیوال خواته ودریده. بیرته یې دروازه بنده کړه خو ځنځیر یې نکړه پخپل ځای ودریده. آسمان ته یې وکتل. آسمان شین و. بریالی داسې ورته ځیرو. لکه چې ستوري شمیري.

چوپتیا خوره وه. مجاهدینو نورې ډزې ونه کړې څو شیبې وروسته څو پرله پسې مرمیو د دروازې د سرله دیوال نه دوړې پورته کړې، دروازه هم په مرمیو ولګیدله. څو مرمۍ ترې تیرې شوې او د کوټو په دیوالونو ولګیدې بریالي د کلاشنکوف شاژور بدل کړ او د کوټې له وره سره ودریده.

دروازه خلاصه شوه، بريالي کلاشينکوف خپلې مخې ته واچاوو په دروازه د څوتنو د راننوتو سره يې خپل دواړه لاسونه د تسليم په علامه پورته کړل.

په دروازه راننوتو کسانو هريوه کوښښ کاوه چې ترنورو د مخه شي خو د مخه تردې چې د انګړ مينځ ته را ورسيږي، بريالي د سترګو په رپ کې کلاشينکوف رااخيست سمدلاسه يې پرې ضربه کړاو دچوترې د کوچنې ديوال شاته يې ځان واچاوو دوه کسه چې ترنورودمخه ول، ځای پرځای ولويدل، نورو په ده ډزې وکړې د پټيدوځای يې نه درلود بيرته يې د دروازې په لوري منډه واخيستله يوبل د دروازې خواته ولويده.

د دروازې له څنګه يوه په بريالي ډزې وکړې يوه ګولۍ يې په ښي مټ ولګيدله.

بريالي د دروازې په لوري پرله پسې ډزې کولې، د دروازې يوه پله هماغسې پرانيستې پاتې شوه.

# پنځم څپرکی

ملوك په هغولومړيو كسانو كې و، چې دكلا په دروازه راننوتي ول. د مخه يې لاخپلوملګروته ويلي و، چې مخامخ به نه ورځو. ځكه خو يې د بريالي د ډزونه لا د مخه ځان د دورازې خواته خونې ته رسولى و. وروسته څرګنده شوه چې كلا بندشوى افسر د دروازې له خوا په ډزو نه بلكې دده په مرمۍ لګيدلى و.

د كلابند شوي افسر په ډزو درې تنه وژل شوي ول. او څلورتنه نور په دروازه كې ټپيان شوي ول. نور له كلا څخه وتلي ول، خو د كلامحاصره يې نه يواځې ساتلې وه بلكې د محاصرې كړۍ يې تر پخوا تنګه كړې وه.

له ملوك سره پدې كوټه كې وروسته يوبل تن هم يوځاى شوى و، چې ده نه پيژاند.

ملوك د خبرو په پيل كې پوه شو چې ناپيژندل شوى سړى دبلې سيمې دى چې ده تردې د مخه نه وليدلى دوى چوتره تر اور لاندې نيولې وه . له دواړو خواو ډزې كيدلې.

ملوك او ورسره ملګري سرنه شواى پورته كولاى چې افسر ووينى خو د چوترې اندازه يې لګولې وه او وار په وار يې پرې ډزونه كول. كله كله به چې له هغې خوا ډزې نه كيدلې نوچوتره به يې وڅارله. اوبيا به يې ډزې پرې وكړې. دوى هماغسې ډزې كولې چې له هغې خوا د ډزو لورى

بدل شو ډزې يې بندې کړې. ملوك د کړکۍ له څنګه وروکتل بيرته يې ژر سرټيټ کړ.

ـ دا زوى مړى خو لکه پيرى دا سې دى اوس له كوټې ډزې كوي.

ـ غم يې مه کوه اوس مو کلاته لاره پيدا کړې ده ډير ژر به په لومه کې بند شي.

او بيا دواړو د کوټې په خوا په ډزو پيل وکړ په کلا باندې له هرې خوا د سپکو او درنو وسلو ډزو هم دوام درلود.

ملوك خپل ملګري ته ورپه غوږ شو.

ـ ته هغه كوټه تر اور لاندې ونيسه. توكل مې دې په خداى وي زه ورځم. دا پدې رقم نشي تسليمداى.

هغه مخالفت وکړ.

ـ نه نه وتلې نشې كرار كينه.

ملوك له ځايه را ولاړ شو ويې ويل.

ـ توكل په خداى زه وزم. ته دې تر اور لاندې ونيسه نور غم مه كوه

ـ مه ځه. زما ومنه مه ځه.

ملوك چې د دروازې له څنګه غلى ولاړ و. بيرته را وګرځيده د مرميو چانټه يې د هغه مخې ته كيښوده.

ـ ها دا كارتوس هم واخله. د سر پورته كيدو مجال مه وركوه. زه له هغې خوا په كلا راخيژم.

ـ توبه توبه ته هم عجيب سړى يې. د غوايي زړه لرې د غوايي.

او له دې سره يې د افسر د پټيدو په كوټه ډزې پيل كړې.

ملوك څو شيبې د دروازې له څنګه ودريده او په يوه منډه له دروازې ووت له دروازې د باندې ويالې ته يې ځان وا چاوو. له هغې خوا وربانده غږ وشو.

ـ ملوکه ته یې؟

ـ هو هو زه یم چې ډزې ونه کړې.

ـ خدای دې خوارنکړه، نږدې خو مې غلبیل غلبیل کړی وې دا وخت د راوتو دی؟

ملوك یې څنګ ته ورغې:

ـ خوشې ډزې مه کوئ، هیڅ ګټه نلري.

ـ نو څه وکړو؟

ـ بس په کلا ورخیژو.

ـ دا څه وایې؟

ـ ملوك وویل:

ـ ښه وایم یوکس دې، هیڅ هم نشي کولای هغه نور به هم خبر کو، او یو څو کسه به په کلا وروخیژو.

ټولو دا خبره خوښه کړه، درمحمد په قوماندان هاشم پسې ولاړ چې له دې خبرې یې خبرکړي، ملوك دوه کسه په زینه پسې ولیږل لږ ځنډ وروسته هاشم راغی او په کلا د ورختو اجازه یې ورکړه، خو ویې ویل چې ملوك به تر ټولو دمخه وي، ځکه چې د دښمن ځای ورته معلوم دی او که څه پېښ شول هم ملامتی د ملوك ده.

ملوك وویل:

هوخوشرط به یې داوي چې ټول به زما په خوله کوي.

هاشم مخ بلې خواته واړاوو:

ـ سمه ده ورځه.

چې ملوك روان شو، ده پسې ناري کړې:

ـ رښتیا چې مړ یې نکړې، په کار مې دی.

# شپږم څپرکی

د اورپه کوټه کې بمونو تور لوګي جوړ کړي و. بريالی په ساړه تناره کې غلی ناست و.

چې په بام به يې د پښنو ترپهار واوريد د کلاشينکوف ميل به يې په هغه خوا ونيو او څو ډزې به يې وکړې چې د لاسي بمونو د لويدلو آواز به غلی شو، له تناره به راووت او له دروازې څخه به يې دباندې ډزې وکړې، بيرته به يې په بيړه ځان تناره ته راورساوو. ښه شيبه به هلته غلی شو.

د خلاصون ټولې لارې پرې بندې وې، خپل مرګ يې پخپلو سترګو ليد، د اولادونو خيرې يې سترګوته ودريدې، مور يې ورياده شوه چې د راتلوپه وخت کې يې اوبه پسې شيندلې وې او ځای په ځای کينستې وه.

خپل کوچنی زوی يې سترګوته ودريده چې د راتګ څخه د مخه يې په سينه پروت و. او دده له غيږې څخه هيچاته آن خپلې مور ته هم نه ورته، خوده دريشي اغوستې وه بايد وظيفې ته تللی وای. ماشوم يې په ژړا ژړا کې مورته ورکړی و. هغه شيبه يې د ماشوم ژړا چې له ده نه جلا کيده. په زړه کې دا فکر پيدا کړی و چې ترڅو به جګړه کوي؟ څوك به دڅه لپاره وژني؟ آن د راتګ په وخت کې خو دا فکرهم ورته پيدا شوی و. چې دريشي وباسي او کرار په کور کې کيني. خپلو آمرانو ته ووايی چې نور نشي کولی چې وجنګيږي. غواړي له خپلو اولادونوسره د مينې ژوند

وکړي. اخیر ترځو به جنګیږي. هغه شیبه یې خپله تفنګچه را ایستلې وه. په کرکه یې ورته کتلي و. له ځانه سره یې ویلي و

ـ ځو چې دا بدمرغه وسله راسره وي. د خوشحالي مخ به ونه وینم وسله چې د چا ترځنګ وي یا به بل وژني او یا به بل څوک دی وژني.

بیایې د بې وسي اسویلی ترخولې وتلی و ویلي یې و:

ـ ریښتیا چې وسله د شیشکې وینه ده.

هغه ورځ یې له وسلې څخه کرکه شوې وه بد بد یې ورته کتلی و. زړه یې و چې ایسته یې غورځاره کړي او ځان ترې خلاص کړي.

خوسترګې یې پټې کړې وې او تفنګچه یې بیرته ځنګ ته اچولې وه. هغه لاره چې سفر یې پیل کړی و یوه یو طرفه جاده ورته ښکاره شوې وه چې بیرته راګرځېدل ورته نه کېدونکي بریښېدلي ول.

په هغه ورځ یې وسله تربل هروخت بده ایسېدلې وه او یو اناوټ بار ورته ښکاره شوی و. خو نن یې د ځان د ژغورنې لپاره له وسلې څخه مرسته غوښته په زړه کې یې ورتیرشول:

ـ وسله که بار ده یوه ورځ پکار ده

بریالي خپل کیڼ لاس د مټې په زخم کېښود. لاس یې په وینو لوند شو.

له بامه ناري وهل کېدلې:

ـ تسلیم شه. تسلیم شه

ـ کلیمه ووایه. وروستۍ سلګۍ دې دي

ـ تسلیم شه کنې غوښې به دې هم څوک را ټولې نه کړي

بریالي له ځانه سره کلمه شریفه تیره کړه

ـ لا اله الا الله محمد رسول الله. یا خدایه ته خو مې حال ګورې بیایې د بام په لوري درې ځله پرله پسې ډزې وکړې

لاسي بم کوټې ته راولویده. چرې یې دده تر سر چې په تناره کې ولاړ و تیرې شوې.

په تناره کې غلی و. په مخ یې خولې راماتې وې پخپله ملا یې د وینو لنده بل احساساوو. غوږ یې ونیو. په شونډو یې موسکا خوره شوه د کلا له شاېې غرهار واورید. چې ښه غوږ یې ونیو غرهار یې وپیژاند د زرهپوش غرهارو.

د بریالي په زړه کې د ژغورنې او ژوندي پاتې کیدو هیلې راوټوکیدې.

پوه شو چې دولتي قواوې یې مرستې ته راغلې دي ځکه مجاهدینو تراوسه له ټانګ او زرهپوش څخه په جګړو کې کار نه و اخیستې. دده پوخ یقین و. چې زرهپوش دولتي دې.

اوس به ټول تخم تنهکار کړي. او دی به ژوندی له سیمې څخه وباسي.
له ځانه سره یې وویل:

ــ شب درمیان خدا مهربان. ریښتیا چې څوك خدای نه وي وژلې نه وژل کیږی.

د زخمونو درد یې هیرشو. زړه یې و چې له تناره څخه راوخیږي او له کوټې د باندې په مجاهدینو حمله وکړي.

خو بیرته پښیمانه شو. د زرهپوش د غرهار آواز وار په وار نږدې کیده. بریالي ښه وبلله چې پخپله دزې ونه کړي هسې نه چې په دې وروستي وخت کې ووژل شي.

ــ قوا به ټولو ته سبق ورکړي

د زرهپوش د غرهار آواز نږدې شو. خو له بامه دزواو لاسي بمونو هماغسې دوام درلود.

ده ته شك پیدا شو که چیرې دولتي قواوې راغلي وي نو بیا دا دزې ولې نه کمیږي. هسې نه چې زرهپوش هم ددوی وي.

خو بيرته يې ځانته ډاډ ورکړ: نه نه دوی زرهپوش نه لري، دا دولتي قوا ده او دباندې له نورو سره په جګړه لګيا ده که خدای کول دوی ته به هم ژر را ورسيږي.

خود زرهپوشونو غرهار دومره نږدې و، چې د بريالي شک يې لا زياتاوو.

په تيره کله چې د کوټې ديوال د زرهپوش له ډاروونکي غرهار سره ودروسيده. له بامه هم ډزو او کنځلو هماغسې ادامه لرله.

د کوټې د باندينۍ ديوال څخه خاورې او لوټې راتويې شوې، بريالی پوه شو چې زرهپوش غواړي کلاته راننوځي، په بيړه له تناره راووت د بلې کوټې دروازه يې خلاصه کړه او له هغې کوټې يې ډزې وکړې پوه شو چې مرمۍ يې په ختميدو دي.

کلاشينکوف يې خپلې سينې ته ونيو اوګوته يې په ماشه کيښوده. بيرته يې کلاشينکوف په بله خوا راواړاوو. له کړکۍ څخه يې د انګړ په لوري يو ډز وکړ ښايې فکر يې کړی وي چې تر وروستۍ مرمۍ پورې وجنګيږي او بيا په اخيري مرمۍ خپل ځان ووژني.

له کړکۍ څخه يې دوه نور ډزونه هم وکړل د کړکۍ ترڅنګ ودريده او غږ يې وکړ:

ـ زه تسليم يم ډزې مه کوئ.

د بام له خوا ډزې غلې شوې خو د دروازې له خوا لا ډزې کيدلې. ده بيا وويل:

ـ ډزې مه کوئ، زه تسليم يم. بيا ستاسې خوښه که مې وژنئ که مې پريږدئ.

له پاسه چا غږ وکړ:

ـ اوس؟

څو تنو په زوره وخندل. یوه غږ وکړ:

ـ چې تسلیم یې راووزه.

د دروازې له خوا هم ډزې غلې شوې.

بريالی کلاشينکوف په لاس د کړکۍ له خوا د باندې ووت تر برنډې لاند ودريده خپل تش کلاشينکوف يې له يوه لاسه بل لاسته کړ په څيره کې يې د مايوسي نښې نه ترسترګو کيدې.

چاغږ ورباندې وکړ:

ـ وسله واچوه.

بريالي وسله په ځمکه کيښوده او لاسونه يې پورته ونيول، د دروازې له خوا پنځه شپږ تنه چې ګوتې يې په ماشه نيولې وې، دده په خوا را روان شول چې د انګړ منځ ته راورسيدل بريالی ژر په کلاشينکوف ورټيټ شو او د هغوی په لوري يې ونيو.

ترنورو مخ ته را روان سړي کلاشينکوف پرې ضربه کړ. او شاژور يې په بريالي خالي کړ، تر څنګ بل کس يې هم ورباندې ډزې وکړې خو د شا کسانو بيرته د دروازې په لوري منډه واخيستله. بريالی ځای پرځای ولويده، لومړی کس چې ځان يې بريالي ته راورساوو، ملوك و، د بريالي سر يې راپورته کړ، بيرته يې پريښود په سختۍ سره په ځمکه ولګيده، ملوك سر وښوراوو ويې ويل:

ـ د نرزوي خو وې، ارمان چې کاپير نه وای.

دا نور هم د بريالي د بې ساه جسد شاوخوا هك پك ودريدل. خو د يوه په سترګو کې هم د بري د خوښۍ نښې نه معلوميدې.

قوماندان هاشم له څو کسو سره راورسيده چې ويې ليدل افسر وژل شويدی ملوك ته يې بد بد وکتل. له بوټو سره د بريالي په مخ ودريده، څو لغتې يې وواهه. په ښۍ پښه يې دمړي سر يوې بلې خواته واړاوو:

وی دا خوبل څوت دي. ما سکه ویل شکور ملحد دی

لــه اوږي یــې کلاشـینکوف راکــوز کـړ. قیـد یــې پــه ضــربه ودرا وو

وبریالي ته یې مخامخ ونیو سموت له لرې پرې غږ وکړ

مړ مار څوك په لغته نه وهي پوه شوې که پوه نشوې پـرې یـې ږدئ.

مطلب دغو مړه سزا یې بس ده

# اووم څپرکی

په تیره جگړه کې د قوماندان هاشم دګروپ سره یوځای نورو ګروپونو هم برخه لرله خو په ټولوکې د«غفار»ګروپ ددولتي کتار موټر هم بیولي و او وسلې هم ډیرې دوی ورسره وړې وې

هاشم خو ځله سپین ږیري ورلیږلي و چې هم پخوانۍ وسلې چې له پاکستانه ددوی ګروپ ته راغلې وې او د قوماندان غفار کسانو په لاره کې ګرځولې وې دوی ته ورکړي او هم ددولتي کتار د غنیمت مالونه ورسره وویشي

خو قوماندان غفار دا یوه خبره هم نه وه منلې او هغه یې د غنیمت مال بللی و. چې دوی پخپله لاس ته راوړې دي

هسې خو پخوا هم کله کله ددوی ترمنځ وړې جګړې کېدلې چې بیا وروسته به یې سوء تفاهم وباله او بیرته به سره پخلا شول خو دا ځل قوماندان هاشم ټینګ هوډ کړی و. چې له قوماندان غفار سره به فیصله کوونکې جګړه کوي هم به خپلې وسلې او د غنیمت مالونه ترې په زور راوړي او هم به سیمه ترې نیسي. ځکه د هغه د ګروپ کسان دده د ګروپ تر کسانو ډیر لږ وو په تیره چې په وروستۍ جګړه کې دوی یو زرهپوش هم پیدا کړی و. او د غفار ګروپ یوازې څوموټربیولي و

هاشم پخپل بري ډاډمن و. قوماندان عبدالغفار په وروستي ځل هم

منځګړیو ته د زور خبره کړې وه، ویلي یې و، چې هاشم اوس هم د دوی برخه وسلې له ځانه سره ساتلې دي هاشم باید دوی ته د هغو خپلې وسلې وسپاري.

له یوې اوونۍ راهیسې د دواړو ترمنځ د توغندیو جګړه روانه وه د هغوی توغندي د دوی په سیمه کې په کلیو کې لګیدل، دوی هم له دې خوا توغندي ویشتل اوپه دوربین کې به یې لیدل چې د هغوی له کلیو دوړې پورته کیږي.

دوی د هغې سمیې اوسیدونکي نیول او بندیانول او هغوی هم لویه لاره نیولې وه د دوی د سیمې اوسیدونکي به یې له موټرونو څخه ښکته کول او بندیانول به یې.

پخوا به چې د دوی ترمنځ داسې جګړه پیل شوه دولتي الوتکو به د دوی سنګرونه بمبارول او یا به سپین ږیرو منځګړتوب کاوو او د دوی جګړې به بندې شوې خو اوس دولتي الوتکوهم دوی پخپل حال پریښې وو ښایي ویل به یې تر الوتکو یې خپل منځي جګړه ښه تباه کولای شي په تیره یوه اونۍ کې نه الوتکو بمبارد وکړ او نه یې چا ترمنځ منځګړتوب وکړ.

هاشم څو تنه لا پرون د غره خواته لیږلي و. یو بل ګروپ ته یې وظیفه ورکړه چې له بلې خوا حمله وکړي.

هاشم، نعیم، شین ګل، ملوك او شیر نور وروستي کسان و چې د ماښام له لمانځه وروسته دارمې په غره وروختل. خو لکه چې د غفار کسان د مخه خبر و. مخکې تردې چې دوی یرغل پیل کړي هغوی ډزې وکړې له لومړیو ډزو سره د قوماندان غفار په مرکز له دریو خوا و یرغل پیل شو په غره کې د ډزو انګازو د هاشم کسان وارخطا کړل خو هاشم خپل جرأت ونه بایله خپل ورسره کسان یې په دریو ګروپونو وویشل یو ګروپ یې مخامخ ولیږه بل ګروپ ته یې وظیفه وسپارله چې

پخوانیو استول شویو ته سوکه سوکه ځانونه ورسوي پخپله له لومړي ګروپ سره پاتې شو.

له پاسه په دوی ددهشکې ډزې پیل شوې، ډزو په غره کې ازانګې کولې اصلي ځای هیچاته نه معلومیده. ملوك پخپل راتګ پښیمانه و، په زړه کې یې هاشم ته غوصه راتله د ډېرې ترخنګ یې نور هم ځان غلی کړ. ډزې یې نه کولې. فکریې وکړ په چا ډزې کوم څوك وژنم ولې یې وژنم، د چا لپاره ؟

شاوخوایې وکتل هاشم ډزې کولې، له هرې خوا ډزې کیدلې خپل او پردی چا ته نه معلومیدل، ملوك هماغسې غلی ناست و، زړه یې و چې ځان لاندې شیلې ته ورسوي او تر سهاره چیرته لرې کینې خو دا کار ورته نا ممکن ښکاره شو، ځکه له یوې خوا یې قوماندان شاته مورچل نیولی و، له بلې خوا له جنګه تیښته ورته بې غیرتې معلومیده، دا مهمه نه وه چې له چاسره جګړه کوي خو له جګړې تیښته ورته د بې غیرته خلکو کار ښکاریده. د هاشم له مورچل څخه دده په مورچل ډزې وشوې، ملوك وارخطا شو فکر یې وکړ چې د هغه مورچل نیول شوی دی خو وروسته یې ولیدل چې د هاشم له مورچل څخه نورې ډزې ددښمن په خوا وشوې له ځانه سره یې وویل ښایې دا ډزې د قوماندان ډزې وي او ماته په غوصه وي چې ولې ډزې نه کوم زړه نازړه یې څو هوایي ډزونه وکړل. خو ژر متوجه شو چې مخالفین ورته نږدې شوي دي ډزې د څنګ له خوا پرې وشوې د هاشم له خوا راویستل شوی لاسي بم ملوك نورهم وارخطا کړ بې واره یې چیغې کړې:

_ څه کوې څه کوې زه ....

خود قوماندان هاشم له خوا راویستل شوی دوهم لاسي بم په درز کې یې غږ ورك شو.

اوس نو له هرڅا څخه د ډزو لوری ورك شوی و. له هرې خوا چیغې ناري اوریدل کیدلې.

- مه یې پریږدئ.

- چې یو هم روغ درنه ولاړ نشي. له دابلې خوا پې را تاو شئ. پرله پسې ډزو یرغل کوونکي سخت وارخطا کړي ول.

له قومامندان هاشم څخه هم دخپلو کسانو درك ورك و. یوازې عیدمحمد ورسره پاتې واو هغه هم داسې وارخطاو. چې دده د خبرو ځواب یې هم نه شوای ورکولای هاشم چې په کیڼ لاس سرسري ټپي شوی و. په کوپه ملا خان شیلې ته ورساوو. نوریې ډزې نه کولې او دواړه په بیړه د شمال په خوا روان و. شیله که څه هم د قوماندان غفار تر مرکز لاندې وه خو له ګولیو څخه مصئونه وه. کله کله به یوه نیمه ګولۍ د شیلې د بل لوري په څنډه په ډبرو ولګیده او دوی دواړو به ژر سرونه ټیټ کړل. کله کله خو به ځای په ځای څملاستل چې ډزې به یو څه کمې شوې بیا به یې په منډو پیل وکړ اوس نو د سهار رڼایي په خوریدو وه.

هاشم پوه شو چې وسله والوکسانو یې خبره نه ده منلې ځکه هغه ډله چې د شمال په لوري یې لیږلې وه ټول په شیله کې و. یوهم له شیلې پورته نه و تللی دا ځای د قوماندان غفار له مرکز څخه لرې و. د پخوانیو لیږل شویو دوو ډلو کسان ټول روغ رمټ و. یوازې نظرالدین او انور برسیرن زخمیان شوي ول.

خو له قوماندان هاشم سره یوځای په تللیو کسانو کې اته کسه ورك ول او درې کسه سخت ټپیان ول. له ورك شویو څخه یو غرمه مهال د قوماندان هاشم مرکزته راورسید

# اتم څپرکی

د ملوك د مرګ آوازه لا دوه ورځې د مخه کلي ته را رسيدلې وه او د کلي يونيم سپينږيري خبر شوي و چې ملوك د غفار له ګروپ سره په جګړه کې وژل شوی دی او مړی يې هم هلته پاتې دی. خو چا يې د مور خبرولو ته زړه نه ښه کاوو د کلي سپين ږيرو قوماندان هاشم ته ويلي و. په هرډول چې کيږي د ملوك مړی بايد پيدا او کلي ته راوړل شي.

هاشم له خپلو کسانو سره لا پرون مازديګر د مړي د پيدا کولو لپاره د غره هغې خوا ته تللي و. خو د هغه مړی يې نه و پيدا کړی.

يوپه وينو لړلی کلاشينکوف يې ملوك ماماته ورکړی و. سهار وختي د ملوك ماما آغا محمد او بل کليوال ظريف د ملوك مور خبره کړې وه. بيا چاله هغې سره د مخامخ کيدو جرأت نه و کړی.

د هغې د سويو نارو او صوتونو د اوريدو توان يوه هم په ځان کې نه ليد هيڅوك هم بيا کلاته نه و ورغلی يوازې آغا محمد و. چې کله کله به کورته ننوت خپله خور به يې وکنځله يا به يې ورته نصيحت وکړ او بيرته به له اوښکو په ډکو سترګو راووت.

د ملوك د مور او نورو ښځو ژړا له کلا د باندې اوريدل کيده ځکه خو کليوالو د خيرات ديګونه د پخوانې دود په خلاف د کلي د زاړه جومات ترخنګ باندې کړي و. او د خيرات ډوډۍ بې په لوخ جومات او جومات ته څيرمه چوتره کې ورکوله.

☆ ☆ ☆

هلته د ظریف آکا په مهمانخانه کې ټولو د قوماندان هاشم خبروته غوږ نیولی و، چې د ملوك د مړینې او سربښندنو کیسې یې په ډیر خوند بیانولې.

ـ خدای پاك دې یې وبخښي په کوم جنګ کې به چې دی را سره و زه نا کامه نه یم راغلې.

یوه بل دده خبره تائید کړه:

ـ یاره که دکشي خیلو په جنګ کې دی نه وای موږ به ټول روسانو ژوندي نیولي و.

چې ویې لیدل چا یې خبرو ته چندان غوږ ونه نیو نو پاتې خبره یې د ځنګ سړي ته بشپړه کړه:

ـ په هغه ورځ د روسانو ډیره غټه قوه راغلې وه، موږ له کوز کاریزه ورسره جنګیدو، چې روسان به مخکې راتلل موږ به ویشتل او ځای په ځای مرداریدل، خو د مازدیګر خواته له کوز لوري بله قوه راغله موږ یې په منځ کې را ایسار کړو خدای دې یې شهادت قبول کړي او درمان شهید شو، بس هغه یو راکټچي و، د بل چا راکټ زده نه و، په موږ د ګولیو داسې باران جوړشو، چې هیچا سر هم نشوای پورته کولای.

ملوك ورمنډه کړه د هغه راکټ یې په اوږه کړ د روسانو ټانګ چې مخه یې د نورمحمد حاجی صاحب د کلا په طرف وه وویشت. دا نور ده ته غوږ شول ده هم مخ نورو ته واړاوووېې ویل:

له هغې خوا د دهشکې ډزونه پې وشول، ملوك په وچ میدان پروت وکړ موږ ټولو ویل شهید شو، خو لږ وروسته یې هغه بل زرهپوش چې موږ یې تر اور لاندې نیولي وو، وویشت زرهپوش ځای په ځای وسوزیده، له هغه ځایه یې منډه کړه ځان یې یوې ویالې ته ورساوو هلته د مرمیو داسې باران پې جوړ شو چې موږ ویل ملوك نورختم دی خو لږ وروسته زموږ خواته بل ټانګ اور واخیست ده د شا له خوا ویشتی و.

یوبل چې د کوټې په بر کونج کې غلی ناست و راغږ کړ:

ـ په هغه جنګ کې زه هم وم. له ملوک سره د زمري زړه و د زمري، هغه بله خبره دې لکه چې هیره شوه چې د شپې ولایت ته تللی و. لومړی کس بیا وویل:

ـ هو ریښتیا بیخي د نه منلو خبره ده په هغه....

یوبل کس چې زیړه خولۍ یې پرسروه، د دروازې له خوا راغږ کړ:

ـ ملوک د مرګ سړی نه و، دغسې مجاهدین به ډیر کم پیدا شي.

سموت پښې راټولې کړې وې ویل:

ـ ورک یې که وایي مړ وای په سرو اوښو نه په سپیرو خرو، مطلب ملوک ډیر بې ځایه....

قوماندان هاشم له ځایه را ولاړ شو په غضب سره یې وویل:

ـ اوس موږ او تاسې باید ده هغه غچ واخلو چې د غفاري، شل نفره ترې جار نه کم دا ږیره به په سپي ولاړه وي.

له قوماندان سره یوځای ټول له کوټې ووتل.

# نهم څپرکی

هاشم چې د مرکز کلاته راغی، مخامخ د زندان کوټې ته ولاړ. عصمت الله (سموت) څو نغاړل شوي کاغذونه ورته راوړل هاشم لومړۍ پاڼه را واخیستله تر نظر یې تیره کړه، په زنګانه یې کیښوده. بله یې تر نیمایي ولوستله.

قوماندان هاشم تر اووم ټولګي پورې ښوونځی لوستی و بیا په یوه ښوونځي کې تحویلدار مقررشوی و. د تحویلداري اتمه میاشت یې وه چې له پاسه تفتیش پې راغی. په حساب کې باقي وخوت. تحویلدار څلور میاشتې په دهمزنګ کې و. له هغه وروسته بې درکه شو.

یوځل د داؤدخان په وخت کې چا د بنو په بازارکې لیدلی و وروسته چې جګړې پیل شوې. تحویلدار هاشم هم را پیدا شو اول له څو کسو مجاهدینو سره په غره کې اوسیده. دی یې مشر و په هغو اولو وختونو کې یې خپله کورنۍ پاکستان ته بوتله. چې بیایې بیرته راوستله.

دده په برخه کې ویل کیدل چې له پاکستانه تربل هر قوماندان زیاتې وسلې راوړې. اوپیسې هم ډېرې لري. له نورو ګروپونو څخه هم ډیر کسان دده ګروپ ته راغلل. هاشم ورو ورو په ټولو زورور شو.

یو وار خو یې د خپل تنظیم اته کسه قوماندانان په یوه شپه ووژل. اوس نو په سیمه کې یوازې عبدالغفار و. چې له ده سره یې سیالي کوله.

د غفار مرکز د شمر په غره کې و. مجاهدينو به خپلې وسلې په همدې لاره راتيرولې هاشم به ويل غفار کمونيست دی. اول يې زما وسله لوټ کړې ده، چې داسې کسان ژوندي وي، جهاد نه کاميابيږي.

سموت به ويل:

ـ افسوس ددې دومره بې ګناه خلکو چې ددوی دواړو په جنګ کې وژل کيږي مطلب دا وسلې دي چې غفار يې ساتلی دی. کنې ته وچکی غفار وګوره او بيا مطلب هاشم وګوره. رحمان بابا رښتيا ويلي: چې ټوپك ايجادشو ميړنتوب بربادشو.

هاشم ټولې پاڼې ژر ولوستلې. کاغذونه يې سموت ته چې ددروازې په خوله کې غلی ولاړ و وركړل.

ـ ها واخله دا چرموړلي کاغذونه دي.

بيايې بنديانو ته مخ واړاوو ګل مرجان څوك دې؟

چا څه ونه ويل. خو سموت د کوټې په کونج کې ناست سړي ته ګوته ونيوله.

ـ هغه دی. ډير خطرناك سړی معلوميږي مطلب ماوين سياسي دی.

او چې قوماندان کوم غبرګون ونه ښود پسې زياته يې کړه:

سترګوته يې نه ګورې مطلب داسې سړې دي لکه د وينو کاسې پوه شوې كه پوه نشوې.

قوماندان پوښتنه وکړه:

ـ په دې نورو کې کوم يو لوی کمونيست دی؟

ـ چې په قوه کې مو نيولي دي له هغو دوو ماسيوا چې قوماندانان او منصبداران دي نور ټول عسکردي. او دا يوه دور ته چې ناست دي د غفار مجاهدين دي.

قوماندان په غوصه وويل:

ـ مجاهدین مه ورته وایه د مجاهدینو دې بلا پېښ وګرځي. اصلي دښمنان دوی دي.

هاشم خوشیبې غلی و.

ـ ګل مرجان او دا نور دوه کسه پرېږدئ نور ټول بوزئ.

ـ چیرې صاحب؟

ـ هغه ځای ته چې د ټولو ورمخه ده.

ـ سموت په حیرانۍ وویل:

ـ مطلب د غفاري کسان هم؟

ـ هو نو څه هغه مې د پلار زامن دي؟

سموت بیا وپوښتل:

ـ دغه درې کسه نه بوزو؟

قوماندان په بې اعتنایي سره وویل:

ـ منزل د ټولو یو دی خو سفر جدا جدا.

قوماندان هاشم له ځایه راولاړ شو د زندان د کوټې ترمخ په لارګۍ کې یې په هغه لوی پوستر ځان بوخت کړ چې د نبوي (صلی الله علیه و آله و سلم) جومات انځور پرې کښل شوی و. تر انځور لاندې د لقمان حکیم خبرې لیکل شوې وې:

ـ د سترګو توره خدای (ج) وپیژنه.

ـ کله چې چاته نصیحت کوې پخپله پرې عمل کوه.

ـ د هر سړي قدر وپیژنه.

ـ عاجزي خپله وظیفه وګرزوه.

ـ کم اصلو نه د وفاداري طمع مه کوه.

ـ د خلکو ګټه خپلې ګټې سره وتله

ـ ښځو او ماشومانو ته راز مه وایه

ـ د خلکو په مخ کې غاښونه مه خلال کوه.

ـ له دوست او دښمن سره په ....

هاشم د لقمان حکیم نصیحتونه تر دې ځایه ولوستل. وسله وال ته یې مخ ورواړاوو:

ـ دا عکس له دې ځایه ایسته کړه.

وسله والو د بندیانو لاسونه او سترګې وتړلې او د کوټې څخه یې وایستل.

ـ په کوټه کې یوازې یو وسله وال، ګل مرجان او دوه نور بندیان پاتې شول، قوماندان بیرته کوټې ته راننووت وسله وال ته یې مخ واړاوو.

ـ ددوی لاسونه خلاص کړه.

وسله وال زړه نازړه د هغو لاسونه خلاص کړل او څنګ ته ودریده، د قوماندان په اشاره پوه شو، له کوټې ووت او دروازه یې وتړله.

قوماندان ګل مرجان ته مخ واړاوو:

ـ ښه ماوین صاحب ته ماوین سیاسي وې؟

ګل مرجان ورو وویل:

ـ هو صیب.

ـ ښه دا ووایه چې عسکروته دې څه ورښودل؟

ـ درس مو پرې زده کاوو.

ـ اپرین د څه شي درس د کمونیزم؟

ـ نه کمونیزم دې ورک شي.

قوماندان دا نورو ته مخ وروواړاوو:

ـ دا څه وایې؟

دواړو سرونه ښکته نیولي ول هیڅ یې ونه ویل. قوماندان بیا پوښتنه وکړه

ـ دی چې څه وایي رښتیا وایي. زړه یې هم دغسې وایي او که له ما ډاریږي؟

چې چا ځواب ورنکړ نو د ګل مرجان خواته راغی تر ګریوان یې ونیو

ـ تاته وایم په دې خبره به ته هم زړې کلا ته ځې ماته رښتیا ووایه.

ګل مرجان په عاجزۍ وویل:

ـ له مجبوریته په اردوکې وم کنې ....

قوماندان یې خبره غوڅه کړه:

ـ ګوره

بیایې دا نورو ته وویل:

ـ تاسې هم ځان پوه کړئ. په دې زاریو نه خلاصیږئ. او دا هم معلومه ده چې تاسې کمونستان یاست. خو ماته خپلې د زړه خبرې وکړئ.

ټولو ځمکې ته کتل هیڅ یې نه ویل هاشم بیا وویل:

ـ زه دې ته ضرورت لرم چې پوه شم یو بسلمان څرنګه کمونیس کیدای شي.

د خپل بوټ په څوکه یې د وره خواته نږدې د ناست بندي سر چې ځمکه یې ګروله راپورته کړ ویې ویل:

ـ ته څه وایې. سړی څنګه کمونیس کیږي؟

بندي په ټیټ غږ وویل:

ـ زه به څه ووایم صیب. دا دې هغه څوك ووایې چې کمونیست دی.

ـ ته کمونیس نه یې؟

ـ په شکر. الحمد لله صاف سوچه مسلمان یم.

قوماندان په قهر وویل

ـ ته سکه وایې چې په بسلمان بسلمان ویلو به راچې خلاص سې چې ته هم نه یې. زه هم نه یم. هغه هم نه دی نو څوك دی؟

ـ په افغانستان کې کمونیست ممونیست نشته که وي ډیر به کم وي.
ـ چې ونیول شئ بیا خو خود کمونیستان نه یاست.
قوماندان هاشم په څټ را وګرځیده ګل مرجان یې په څپیړه وواهه.
ـ ووایه.
ګل مرجان هیڅ ونه ویل.
هاشم ترستوني ونیوا او په قهر یې وویل:
ـ ووایه ووایه، په ځان نه په ما رحم وکړ. ما پوه کړ.
ګل مرجان غلی ولاړو. هاشم په پوزه په سوك وواهه له خولې او پوزې یې وینو داره وکړه. ځای په ځای کیناست.
ـ مه کینه د سپي زو. څه پلار خو مې نه یې.
هاشم دا وویل او د هغه په وهلو یې پیل وکړ. بل کس یې چې په کونج کې غلی ولاړو، د کوټې په منځ کې را څملاوو. په ګیډه یې ودریده.
ـ بې غیرتانو. بې ایمانو ربنتیا چې ایمان نه لرئ.
دریم کس یې هم په هغه برسیره څملاوو او په وهلو یې پیل وکړ.
قوماندان غوریده په خبرو یې څوك نه پوهیدل
بندیانو یوازې زګیروی کاوو.
قوماندان به کله یو او کله بل وواهه.
ـ څه بلا وهلي یاست. تاسې درې نفر یئ او زه یو یم. نه ټوپك لرم نه کوتك. ولې د ګیدړانو غوندې پراته یئ بې ایمانو. تاسې په ...
بیا د ګل مرجان خوا ته چې د لاس په شا یې د پزې وینې پاکولې ورغی.
ـ ولې غلی ناست یې. له ما سره جنګ وکه. ما ټولو ته ویلي دي که ما مړ هم کړئ څوك به دلته رانه شي.
بیا یې ګل مرجان تر ستوني ونیو

ـ ولې د ښځې غونډې راته ګورې. ما هم ووهه. زه تا وهم ته مې نه وهې.

د ګل مرجان ستونې یې پرېښود:

ـ اوه خدايه. تراوسه مې يو داسې غيرتي ونه ليد. چې زما لاس ونيسي.

قوماندان د نشه يانو غونډې ګډ و:

ـ ما مړ کړئ، ما مړ کړئ کنې تاسې وژنم، لکه سپي داسې ام وژنم مړي مو په سپو خورم.

# لسم څپرکی

ـ دا لومړی ځل و، چې ملوك سترگې پرانستلې، شاوخوا یې وکتل، څو تنه نا اشنا کسان چې سپینې چپنې یې اغوستې وې د کټ شاوخوا ولاړ ول.

ملوك په وارخطا یي سره پوښتنې کولې.

ـ دا کوم ځای دی؟ تاسې څوك یاست؟ دا په ما څه شوي دي؟

یو ډاکټر یې په سر لاس کیښود او هغه یې له ډیرو خبرو کولو څخه منع کړ. ډاکټرخو لنډې پوښتنې وکړې، په سپین کاغذ یې څه ولیکل او له نورو سره ووت.

ملوك څو شیبې سترگې پټې کړې. بیرته یې سترگې وغړولې پوه شو چې څه وربانـدې راغلي دي، دواړه لاسونه یې لـه کمپلې راوایستل پـه ځیرځیـر یـې ورتـه وکتـل، روغ و. د لاسـونو گـوتې یـې وخـوزولې، ټولې جوړې وې.

هڅه یې وکړه چې په ځای کې کیني، خو ویـې نه شوای کړای. پښـې یې غځولې وې، په احتیاط سره یې راټولې کړې ترکمپلي لاندې یـې لاس پـرې وواهـه، یـوه پښـه یـې پلسـتر شـوې وه. سـوړ اسـویلی یـې ترخـولې وکیښ. د خنگ ناروغ ورته وویـل:

ـ شکر چې په هوش راغلې. ډاکټران ډیر خپه و. ویـل یـې چې وینه یې ډیره زایه کړې ده.

ملوك یوازې سر ورته وخوځاوو. کوښښ یې وکړ چې تیر حالت وریاد شي د هغې شپې سخته جګړه یې وریاده شوه. سترګې یې پټې کړې. لکه چې نه غواړي ویې ویني ملوك ډیرې جګړې لیدلې وې. په لږ عمر یې ډیرخطرونه لیدلي ول. له روسانو سره یې مخامخ جګړې کړې وې. پخپله یې هم روسان وژلي و. ملوك داسې څوك نه و. چې د جګړو له سختیو دې وویریږي. خو ددغې جګړې په یادولو هم ویریده

ـ پخوا هغه له دښمن سره جنګیده. له هغه چا سره چې په زور دده وطن ته راغلی و. او دده په کلي او په کور یې یرغل کاوو

خو داځل یې د جګړې بل لوری خپلوان او تربرونه ول هغوی هم مجاهدین ول. خو ولې؟ ولې له هغوی سره وجنګیده؟ ولې یې هغه ووژل. د چا د لاسه؟

ملوك پخپل ذهن کې ددغو پوښتنو په ځواب پسې ګرځید.

پرله پسې یې له ځانه دا پوښتنې تکرارولې. بیا به یې سترګې پټې کړې لکه چې ددې پوښتنو په ځواب شرمیده.

ملوك ددغو پوښتنو ځواب دومره بوخت کړ چې دا یې هیرشول چې څنګه او چا زخمي کړ؟ او څنګه دلته راورسید.

د وروستیو پوښتنو ځواب د تیرو پوښتنو په څیر سخت نه و. خو په خوله راوړل یې ورته شرم ښکاره شو

خپل تندی یې ټینګ په لاس کې ونیو

سترګې یې وموښلې. لکه چې ډاډه نه و. چې وینې دی که ویده. له ځانه سره یې وویل پخپل حال کې نه یم دا په ما څه شوي؟

بیرته یې ځان ته قناعت ورکړ. له بې هوشي وروسته هر ناروغ داسې وي په خوله کې یې ناړې وچې وي

شو خوا یې وکتل ترڅنګ ناروغ یې سترګې پټې وې معلومه نه وه.

چې بې هوشه دی که ویده. هغه بل ناروغ چې د مخه یې په ده غږ کړی و. هم ویده و.

د کوټې بر کونج ته د بل ناروغ سر او مخ داسې پلستر شوي و. چې دی نه پوهیده ویښ دی که ویده.

په خوله کې یې ژبه تاو راتاو کړه. نارې یې وچې شوې وې لکه څوک چې له خطرناك او اوږده منزله وروسته له بندې دروازې سره مخامخ شي. او په راغلې لاره بیرته سرشي.

تیرې پوښتنې یې بیا په ذهن کې وروګرځیدې:

چا دې حال ته راورسولم؟ سترګویې لیدلي و. خو ذهن یې دا نه منله چې قوماندان هاشم دې دده په خوا لاسي بم غورځولی وي اخیر ولی؟ د څه لپاره؟ زه خاین یم که هغه؟

زما مرګ هغه ته څه ګټه رسوله؟ ولی؟ ولی؟ ولی؟

ملوك چې هرڅومره کوښښ کاوو د یوې پوښتنې په ځواب موندلو ځان د پوښتنو له پیټي وژغوري خو بیا به هم د نورو لسګونو پوښتنو سره مخ شو. هغه زما په وژلو څه غوښتل ترلاسه کړي؟ هغه څوك دی؟ زه څوك یم؟ زما په مرګ کې د هغه څه ګټه وه؟

هو رښتیا ما خو لا په ځای پریږده. له غفار سره ولې جنګیده؟ ولې یې ویل چې دغفار د یوه وسلوال په وژلو پنځه زره پاکستانی کلدارې درکوم. د هغو وژلو ده ته څه ګټه رسوله؟ چا ورته ویلي و چې له غفار سره وجنګیږه؟

ملوك دې ټولو پوښتنو ته ځواب نه درلود سریې په کمپله کې پټ کړ. غوښتل یې د پوښتنو له ځنځیره ځان وژغوري

# یوولسم څپرکی




قوماندان هاشم په بې صبري سره د سموت دوی د راتلو انتظار ایست د خونې په بر کونج کې یې یوې بسترې ته ډډه وهلې وه، یوه پښه یې په بله پښه اړولې وه او د کوټې بازوانو ته ځیرو.

کوټه نسبتاً لویه وه، څلور پنځه خیرنې توشکې پکې هوارې وې، دیوالونو ته د بالښتونو په ځای بړستنې ټولې شوې وې، دروازې ته په مخامخ دیوال په لویو میخونو باندې راځړول شوي کلاشینکوف او یوه واسکټ نظر جلباوو، په لویدیځ دیوال یو لوی کاغذ چې کلمه شریفه پرې لیکل شوې وه ځړیده. او په بل دیوال د کړکۍ خواته یو بې چوکاټه عکس نښلول شوی و، چې پورتنی یوکونج یې را خطا شوی و. او د عکس مخ یې پټ کړې و، له زیرې او کرتۍ څخه یې معلومیده چې ددوی د تنظیم د مشر عکس دی.

دروازې ته نږدې د اوبو نیم سټل په یوه پلنه ډبره ایښودل شوی و، ترڅنګ یې په یوه خیرن لوښي کې د پیازو او کچالو پوټکي اچول شوي و.

دا ددغې لویې برجه ورې کلا د کونج کوټه وه، چې خاوند یې څو کاله دمخه پاکستان ته مهاجر شوی و. په کلا کې یوه دور ته نورې کوټې هم جوړې شوې وې. د هرې کوټې ترڅنګ د اور خونه چې تنور پکې و.

جوړې شوې وې او ترمنځ یې یو یو حمام چې د کوټو تاوخانې ترې لاندې تیرېدې هم جوړ شوی و.

حاجي جانګل دا کوټې د خپلو څلور زامنو په نوم جوړې کړې وې چې دوه یې په جنګ کې وژل شوي ول، یویې څو ورځې دمخه پاکستان ته د رخصتی تیرولو لپاره تللی و، او بل یې دوبۍ ته د مزدوري په نیت تللی و. د کلا دباندې له لویدیځ دیوال سره یوه اوږده کوټه جوړه شوې وه چې یو وخت میلمستون و، او د ورځې به څو ځله ډکیده تشیده، خو اوس څوك نه ورتلل، درنه کوټه یې بلله، ویل کیدل چې پیریان پکې اوسي. ددغه مرکز مجاهدینو دشپې څو ځله ددې کوټې په دروازه کې سپین کالی سړی لیدلی و، خو په دوی یې غرض نه کاوو، کله کله به دشپې له همدې خوا یونیم کانې راویشتل کیده چې زیاتره به لامده ول، او کله کله خو به یې دوی په ناپیژندل شویو فلزي سیکو ویشتل، ملاصاحب به ویل چې دا مسلمان پیریان دي. همدې دیوال ته د کلا د انګړ له خوا د پروړې او رشقې لپاره یوه لویه کاهدانه او ورپسې د حیواناتو ګنبدې «ستورګې» جوړې شوې وې. چې کار نه ترې اخیستل کیده.

له قوماندان هاشم سره د کوټې په کونج کې یو پنځلس شپاړس کلن هلك هم ناست و، چې د قطعو په فال بوخت و، ترخنګ یې سینو ټایپ ایښی و.

هلك دومره په فال بوخت و، چې د قوماندان ناڅاپي غږ ولړزاوو هغه ورته وویل:

ـ عیدګله دا سموت دوی ډیر ناوخته نه شول؟

ـ ام

ـ ته ورشه یو وار برج ته پورته شه څار یې وکړه.

ـ ته ودریږه چې دا فال خلاص شي.

ـ قوماندان یوه پښه په بله واړوله.

ـ یره تا خو ټول عمر په فالو تیر کړ. د څه شي فال ګورې؟

ـ ستا لپاره فال نیسم. چې بل واده به دې وشي او که نه؟

ـ رښتیا وایې؟

له دې سره له ځایه راجګ شو دده خواته کیناست قطعو ته ځیرشو.

ـ ښه ښه نو څنګه شو؟

ـ د کرې توس ورك دی که دا راووت نو بیایې خلاص بوله.

ـ هاشم هم ورسره ملګرتیا وکړه.

ـ دا اته تاې هلته کیږده.

ـ هو والله ریښتیا دې وویل.

ـ هغه بل دلته کیږده.

هغه ورقه یې هلته کیښوده. څلورپنځه ورقې نورې هم ووتلې. خو نورې قطعی بندې وې. هاشم وارخطا غوندې شو. مخ ته پرتې قطعې یې بیا واړولې خو اصلي قطعې ترنورو قطعو لاندې بندې وې. قطعې یې بیا واړولې خو پرمختګ یې ونه کړ.

هاشم د بندشوي فال قطعې سره ګډې وډې کړې. عید ګل ته یې منت وکړ:

ـ ایسته کړه دا ناروا دي ورشه برج ته. وګوره چې دوی نه معلومیږي؟

عیدګل له دروازې ووت. هاشم پسې ورغږ کړ.

ـ ریښتیا دا نوروته ووایه چې تیار اوسي.

د عیدګل له وتلوسره سموت او ورسره دوه کسه د کلا په دروازه راننوتل.

د هاشم زړه په ټوپونو شو غوښتل یې چې مخې ته ورمنډه کړي. خو

ځان يې ټينګ کړ او د نسوارو په قطي يې ځان بوخت کړ. داسې يې وښودله چې ددوی په راتګ نه دی خبر شوی.

صالح له دروازې پرې غږ کړ

- قوماندان صاحب لکه چې ته هم غرمه نه وې ويده شوی.

- په ويده وم اوس را پورته شوم لمونځ او اودس مې وکړ.

هاشم دروغ ويل نه ويده شوی و او نه يې اودس کړی و.

درې واړو د بړستنو بالښتو ته ډډه ووهله او پښې يې وغځولې. د هاشم زړه طاقت ونه کړ سموت ته يې مخ ورواړولو:

- د تندې له ګونځو خودې معلومېږي چې بياتش لاس راغلی يې.

- همداسې يې دراخله.

هاشم سترګې برګې کړې په حيرانۍ يې وويل:

- ولې؟

- بس مطلب جمعه دين لا په هغه خره سپورو.

- څه يې ويل؟

- هغه پخوانۍ خبرې مطلب لور مې وړه ده. قوماندان صاحب يې د پلار په ځای دې پوه شوې که پوه نشوې مطلب زه مې لور اور ته نه اچوم.

د هاشم رنګ تور واوښت!

- ددې سړي مرګ راغلی دی.

برات چې پښې يې غزولې وې خپلې پښې يې راټولې کړې وې ويل:

- والله قوماندان صاحب چې هرڅومره مو ورته وويل له خپلې خبرې نه واوښت.

بيايې د ا بل نه مخ وروا ړاوو:

- که څنګه صالح ت خو ولید؟

- هو يره زه چې ورته ګورم دا خر به په اسانه په دې پله تير نه شي

قوماندان هاشم سترګې برګې کړې:

- دې خره ته خدای سوټی (لرګي) پیدا کړی دی چې یو دوه یې په دې ملا ووهې پخپله به تیر شي. که څنګه براته؟

- ما چې ولید زړه مې نه مني چې هو دې کړي.

- داسې به یې لارې ته برابر کم چې ته ووایې شپاړس.

سموت په نصیحت ورته وویل:

یره قوماندان صاحب که زما منې تیر شه له دې غوړې ښوروا، پوه شوې که پوه نشوې.

- دا داسې ښوروا نه ده چې سړی دې ترې تیر شي.

صالح له هغې خوا پرې را غږ کړ:

- والله موږ په لاره همدا سره وویل جمعه الدین یې نه مني چې نه یې مني نه ترې تیرشه.

قوماندان په غوصه شو:

- نن خو ټول یو ډول خبرې کوئ، خدای دې خیر پیښ کړي بل چا خوبه لونګی نه وي درته منلې.

سموت وویل:

- قوماندان صاحب تاته خو معلومه ده مطلب چې سر مې وغواړې هم دریغ به یې نه کم پوه شوې که پوه نشوې خو دا سړی چې موږ پخوا هم ورسره خبرې کړې وې مطلب نن مو هم ولید زړه مې نه مني چې لارې ته راشي.

برات په تائید وویل:

- سموت ریښتیا وایې پریږده قوماندان صاحب جنکۍ خو کمې نه دي خدای هم ښه ځوانی درکړې هم ښه هستي، ته امر وکه تر بیګا پورې به لس دغسې جنکیانې درته کینوم.

هاشم له اسویلي سره وویل
ـ هی هی برات ګله اوس موږ او تاسې خپل سره ناست یو تاسې نه ده لیدلې ماچې لیدلې بس خدای پاك همدا یوه جوړه کړې ده. داسې سترګې خدای ورکړي چې له سړي څخه دنیا او آخرت دواړه هیروي.
سموت وویل:
ـ قوماندان صاحب مطلب خلك به وایې چې دوه ښځې یې لرلې بله یې هم په زور وکړه.
ـ زه به څه کوم هغه دوه وچې وزې، چې نه یې شیدې شته نه یې غوښه د خوراك ده.
دواړو یو بل ته سره وکتل:
هیچا څه ونه ویل، ټول چوپ و. ښه شیبه یوه هم خبرې نه کولې.
قوماندان هاشم وویل:
ـ چې یوځل یې لاس شاته وتړئ او زړې کلا ته یې راولئ پخپله به لارې ته سم شي.
برات وویل :
ـ ته ښه وایې چې زور ورښکاره نه کړو نه یې مني.
سموت څټ وګراوو ویې ویل:
ـ زړه په زور لاسته نه راځي. پوه شوې که پوه نشوې.
رحمان بابا څه ښه فرمایلي دي:
ما پـه زور کـلی آبـاد لـیـدلی ندی
هیڅ ظالم مې په زړه ښاد لیدلی نه دی
قوماندان قهرجنه خندا وکړه:
ـ نو څه وکړم کونډې پرې وکړم؟
سموت د پخوا غوندې ونه ویریده او په پوزخند سره یې وویل

ـ که کوډې کوې نو په لور يې وکه پوه شوې که پوه نشوې مطلب ته پې مين يې او هغه لا خبره نه ده.

قوماندان هاشم په ځواب کې يو اځې وويل:

ـ سمو ته!

دې يوې کليمې ټول پخپل ځای کينول. يوه هم څه ونه ويل، نه چا بيا ورته نصيحت وکړ او نه يې پخپله خبره ټينګار وکړ.

څوشيبې ټول چوپه خوله ناست ول. وروسته يويو له کوټې ووتل.

قوماندان هاشم هم څوشيبې وروسته د کلا انګړ ته راووت، په انګړ کې يوې بلې خواته وګرځيده، له چا سره يې خبرې نه کولې، که به چا سترې مه شې هم ورسره وکړه يوازې به يې د سرپه اشاره ځواب ورکړ.

عيدګل يې ترشا روان و، قوماندان هاشم د يوې دروازې په لوري ولاړ عيدګل ته يې مخ راواړاوو:

ـ ولاړشه، هغه خنځير راوله.

# دولسم څپرکی

باران نوی دریدلی و. په پاخه سرك ځای ځای اوبه ډنډ ولاړې وې. ملوك د روغتون د دریم پوړ په کړکۍ کې ناست و. په سرك یې د موټرو او لاریانو د تګ راتګ ننداره کوله. په سرك تیرید ونکیو پسې به یې تر هغو کتل چې له سترګو به الونیا شول. د کړکۍ د خلاصې پلې په ائینه کې یې وکتل. ږیره یې رسیدلې وه یو دوه سپین ویښتان یې پیدا کړل. ویې نیول، کش یې کړل خو ویې نه ایستل.

دکړکۍ د پلې په ائینه کې یې ګډوډ تصویرونه لیدل. پله یې په لاس تکیه کړه. ښه ورته ځیرشو خو ویې نه پیژندل سترګې یې د لاس په شا وموښلې. په هینداره کې تصویرونه یو په بل اوښتل. ملوك په ځیر ځیر ورته وکتل خړپړکلی. د اور لمبې او لوګی. د الوتکو تصویرونه. شنه فصلونه او وراندې سرې پرخې پرتې او په دې ټولو کې د خمارې تت تصویر په ویښو سترګو د خوب نړۍ ته بوت.

ملوك خپل سر په لاسونو کې ونیو. د سر ویښتان یې ګډوډ کړل. لاندې یې د ښار واټونو ته وکتل. هلته وړاندې په پارك کې ښځې او نارینه ګرځیدل ماشومانو لوبې کولې د روغتون څنګ ته له هوټل نه د سندرو غږ راته.

سپینې خیمې په پاکستان ولاړې دینه

بیا نه درځمه وه رنګ شې کابله بیا نه درځمه

په پارك کې خلك خوشحاله معلومېدل. خندل یې ده ته داسې معلومېدل لکه چې ټول په ده پورې خاندي لکه چې په خلکو یې خوښې نه لورېږي ژر یې مخ بلې خواته واړاوو.

د هوټل د ټایپ د سندرو آواز اورېدل کېده ټایپ کومه بله سندره غږوله خو د ملوك غوږو ته هغه پخوانۍ سندره راتله:

سپېنې خیمې په پاکستان ولاړې دینه

بیا نه درځمه وه ړنګ شې کابله بیا نه درځمه

ملوك له اسویلي سره وویل:

بیانه درځمه، مور مې هم یوازې پرېښودم، د مور د مرګ خبر چې څو ورځې د مخه نظر محمد ورته راوړی و بې سیکه کړی و، نظر محمد چې دبل کلي و، څو ورځې د مخه دلته راغلی و، یوازې دومره خبر و، چې د ملوك مور مړه شوې، نور یې نه له ناروغۍ خبر و او نه ددوی د کور له نور احواله. نظرمحمد داهم ویلي و، چې کلي ته دده د مرګ آوازه تللې ده. ملوك په کوټه کې یوې بلې خواته وګرځېده، نن د مهاجرینو د روغتون دا کوټه له ناروغانو تشه وه، د کړکۍ خواته ودرېده، په هغو ځوانانو یې کینه راغله چې کتابونه یې په لاسونو کې ول، او ښوونځیو ته روان ول.

روغتون ته مخامخ د ښوونځي د درسونو د پیل زنګ ووهل شو، ټول د خپلو ټولګیو په لوري ولاړل، ملوك ته د باتور ښوونځي وریاد شو چې ګروپ یې د شپې په بمونو والوزاوو، ملوك په هغه شپه خپل ی ځانه یې بد راغلل. دکړکۍ دخلاصې پلې په ائینه کې یې ځان ته بد بد وکتل بیرته یې مخ ترې واړاوو.

خو بیرته یې له روسانو سره جګړې وریادې شوې، هغه ورځ چې د روسانو لویه قوا یې پسې واخستله. خوشحاله شو. ځان به لوی اتل ورته ښکاره شو.

بیا به یې خپلو زحمتونو ته پام شو. لوړې، تندې، د هاشم او غفار جګړې....

کله کله له سرې د فکرونو لړۍ وشلیږي، د ښو فکرونو د پښو پلونه ترې ورک شي، ښې او بدې خاطرې یې په یوه وار ذهن ته راځي. ملوك نن همداسې و، د ذهن په آسمان به یې د کرکې وریځې راخورې شوې، زړه یې غوښتل خپل ماشیندار ورسره وای، له دې دریم پوړ نه یې د ښار په خلکو ضربه کړې وای، دا لویه نړۍ به ورته لویه هدیره ښکاره شوه، د خپلو ارمانونو قبرونه یې پکې لیدل. خو بیرته به یې دغو وریځو د زړه په دښتو، د مینې باران وااوراوو. خُماره بهٔ وریاده شوه، له ځانه سره یې وویل:

ــ هغه به هم وایي چې زه په دې دنیا کې نه یم.

ساعت ته یې وکتل یوولس نیمې بجې وې، پرون یې ورته ویلي و، چې نن غرمه به له روغتونه وزي، خو ډاکټران لا نه و راغلي.

ملوك پخپل چپرکټ اوږد وغځېده له ځانه سره یې وویل:

ــ که هغه نرۍ شین سترګې ډاکټره رانه شي، څرنګه به یې وینم. له ځایه را ولاړشو په کوټه کې وګرځیده.

ــ کاپیره ځواني خدای ورکړیده.

د میز پر سر درمل یې سره راټول کړل، په الماری کې هم چې څه کالي و، په ګلدار دسمال کې یې غوټه کړل، بیرته پخپل ځای پریووت.

ژولیا له یوې بلې ډاکټرې سره را ننوته، ژولیا یې په ټنډه لاس کیښود، بلې ډاکټرې یې فشار وکوت، دواړو په انګلیسي څه سره وویل: ډاکټرې دوسیه واخیسته ووتله. ژولیا په یوه پاڼه څه ولیکل ملوك ته یې ورکړل ویې ویل:

ــ تاسې اوس بیخي جوړیاست، هیله ده له موږ سره خپه شوی نه یې.

ملوك ورته وویل:

ـ زه به د تا نیکی ټول ژوند هیرې نه کړم.
د ژولیا سترګو ته ځیر شو.
ـ ډیره میربانه ښځه یې خو ارمان.
خبره یې وژوله نه پوهیده څه ووایي.
ژولیا په حیرانی ورته وکتل:
ـ ارما دڅه؟
ـ ارمان دا چې ته خو کاپیره نه وای.
ژولیا وخندل:
ـ کافیر تاسې چاته وایاست؟
ملوك بې واره وویل:
ـ مورږ کاپیر هغه بولو چې له خدایه منکر وي.
ـ زه په لوی خدای(ج) ایمان لرم ترې منکره نه یم.
ـ عجیبه ده!
ژولیا وویل:
ـ دا څه عجیبه ده، د ځمکې د مخ ټول موجودات د خدای (ج) ثنا وایي او بیا انسان ته خو خدای پاك عقل ورکړی. دا عجیبه نده. عجیبه داده چې مورږ انسان ولې یو له بله کرکه لرو، ولې د کینو په ځای مینه نه کړو.

ملوك حیران حیران ورته کتل. وروستی خبرې یې خندا ور وستله، موسکی شو. شونډې یې بوڅې کړې. په کوټه کې بل څوك نه و. خو ده د ژولیا خواته په شونډو داسې اشاره وکړه لکه چې په کوټه کې نورو کسانو ته وایي:

ـ دا ګوره، له دنیا ناخبره ده. انسان داسې پاکه فیروزه ورته ښکاریږي. خبره نه ده چې دلته انسانان د وروڼو وینو ته.ترږي ناست دي.

د ملوك په زړه کې ډېرې خبرې وې نه پوهیده څه ووايي. ژولیا ته نږدې شو. نیغ یې د هغې سترګو ته وکتل

ـ زه به دې ټول ژوند هیره نه کړم.

ژولیا له کړکۍ د باندې پارك ته کتل. ملوك غلی و. هیله یې لرله له هغې هم د مینې خبره واوري. خو ژولیا څه ونه ویل. ملوك ته یې ښکته پورته وکتل لیکه چې په کتلو کې وایې: «ته افغان یې افغان. ته په مینه څه پوهیږې. ورځه ورځه خپل مورچل ته ځان رسوه.

ژولیا یوځل بیا ورته وکتل شونډې یې وښوریدې د ملوك زړه په ټوپونو شو، ژولیا یوازې وویل:

ـ مننه.

ملوك د هغې ځرځو شنو سترګو ته ځیر و. خو هغه څه یې پکې ونه لیدل چې تمه یې لرله. د هغې سترګو ورته وویل:

ـ ورځه ورځه مورچل ته ځان رسوه. تاسې د مینې لپاره نه د وینې لپاره پیدا شوي یاست. ورځه ورځه مینه له تا څه غواړي. مینه له تا څه غواړي.

# ديارلسم څپرکی

پيره دار د کلاد کونج د ژوري کوټې دروازه خلاصه کړه. دا کوټه پخوا د ازوغ او د ژمي د لرګيو لپاره ځانګړې شوې وه او حاجی جانګل به د ژمي د لاندي د پسونو غوښې هم پکې ځړولې. له دغې کوټې څخه د کلا برج ته هم لاره تللې وه، چې د قوماندان هاشم مخصوص زندان و.

بل پيره دار د برج د خونې دروازه هم ورته خلاصه کړه.

کوټه تياره وه، يوازې د برج له دوهم پوړ څخه د راپرې شوې درځې له لارې رڼا راتله.

په کوټه کې پروت بندي چه لاسونه او پښې يې په سپين پړي تړل شوې وې د قوماندان په ليدو کوښښ وکړ چې له ځايه جګ شي خو ويې نشواى کولاى.

قوماندان پهره دار ته مخ ورواړاو:

ـ دا نور بنديان مو څه کړي دي؟

ـ صايب هغه مو زړې کلا ته وليږل.

ـ هوم، نو ولې؟

ـ تاسې ويل صايب.

زړه کلا په حقيقت کې د قوماندان هاشم وژنتون و. چې چاته به يې په زړه کې تيره کړه نو لاس به يې شاته وروتړل او د شپې به يې زړې کلا ته وليږه.

دلته د هرچا دا سندره زده وه:

لاس دې وتړه شاته  پېسې دې راکړه ماته
دنیا شوه درنه پاته  درځــــه زړې کلا تــه

دعـــاوې کـــوه مـــاتـــه

قوماندان به پخوا چې د زړې کلا په باب د خپلووسله والو کسانو رپوټ ته غوږ و، په ډېره مینه به یې د موسکا په بدرګه د هغو خبرې اورېدې او د ټولو جزئیاتو پوښتنه به یې کوله:

ـ ښه ښه څو کسان وو؟

ـ څنګه مو ووژل؟

ـ ګولۍ خو به مو ډېرې نه وي وربانډې زایه کړې؟

ـ د مرګ په وروستیو شیبو کې یې څه ویل؟

او دې ته ورته په لس ګونو پوښتنې، چې د ځواب په اورېدو سره به یې هاشم مخصوصه خندا وکړه.

خو نن یې چې د زړې کلا نوم واورېد، چندان ښه نه وربانډې ولګېده، ځکه یې بیا پوښتنه وکړه:

ـ ټول مو زړې کلاته یوړل؟

ـ هو صیب.

قوماندان په غوصه وویل:

ـ بد مو کړي دي.

بندي ته یې مخ ورواړاوو:

ـ نوم دې څه دی؟

ـ خاورې ګلان.

ـ ام خاروې ګلان، هم خاروې یې هم ګلان؟

بندي څه ونه ویل، هاشم بیا پوښتنه وکړه:

# دیارلسم څپرکی

پیره دار د کلاد کونج د ژورې کوټې دروازه خلاصه کړه. دا کوټه پخوا د ازوغ او د ژمي د لرګیو لپاره ځانګړې شوې وه او حاجي جانګل به د ژمي د لاندي د پسونو غوښې هم پکې ځړولې. له دغې کوټې څخه د کلا برج ته هم لاره تللې وه، چې د قوماندان هاشم مخصوص زندان و.

بل پیره دار د برج د خونې دروازه هم ورته خلاصه کړه.

کوټه تیاره وه، یوازې د برج له دوهم پوړ څخه د راپرې شوې درځې له لارې رڼا راتله.

په کوټه کې پروت بندي چه لاسونه او پښې یې په سپین پړي تړل شوې وې د قوماندان په لیدو کوښښ وکړ چې له ځایه جګ شي خو ویې نشوای کولای.

قوماندان پهره دار ته مخ ورواړاو:

- دا نور بندیان مو څه کړي دي؟

- صایب هغه مو زړې کلا ته ولیږل.

- هوم، نو ولې؟

- تاسې ویل صایب.

زړه کلا په حقیقت کې د قوماندان هاشم وژنتون و، چې چاته به یې په زړه کې تیره کړه نو لاس به یې شاته وروتړل او د شپې به یې زړې کلا ته ولیږه.

اوله دې سره یې بندي د سر تر ویښتانو ونیو. په بل لاس یې په خیټه کې په سوك وواهه.

یوازې یوه چیغه واوریدل شوه.

قوماندان بیا وویل.

ـ لکه چې نه سړې کیږې ها؟

بیا یې د هغه دواړه لاسونه د شا په خوا قات کړل او کې یې کاږل، بندي چیغه وکړه:

ـ اوف مه کوه مړدې کړم.

هاشم یې لاسونه نور هم پسې تاو کړل، بندي چیغې وهلې.

قوماندان په قهرجن آواز وویل:

ـ خبرې وکه، د نر غوندېووایه چې کمونیس یم. تهولو ته مالوم یې چې د کمونیستي سبق تا خلکوته ورکاوو، باچاته نه یې مالوم.

چې وې لیدل بندي څه نه وایي په نرمه لهجه یې ورته وویل:

ـ که ته وایې چې په پټه خوله به خلاص شم. نه خلاصیږې او چې ووایې دا مې قول دی چې ژوندی دې پریږدم.

هاشم د قول په دود لاس ورنه کړل څکه چې لاسونه یې دده په لاسونو کې و او وار په وار یې تاوول بندي یوازې چیغې وهلې د هغه چیغو قوماندان لاپسې عصباني کړ غیږ یې ورکړه ځای په ځای یې را خملاوو. په خیټه یې کیناست او ترستوني یې ونیو په ژړغوني غوندې غږ یې ورته وویل:

ـ اوس وایی که نه ها؟

ـ د بندي له خولې ووتل:

ـ هو هو زه حزبي وم. مړ مې که. ولې راته ګورې.

له دې سره یې هاشم ستونی پریښود د دروازې خواته کیناست په ستړې ساه یې ورته وویل:

ـ ماته مالوم وې خو بس ما ویل یو وارې ستا له خولې هم واورم.
ګلان هیڅ ونه ویل.
هاشم له ځایه را ولاړ شو دروازه یې خلاصه کړه چې ویې لیده پیره دار ولاړ دی منت یې پرې وکړ:
ـ ولې دلته ولاړ یې، ځه دباندې د هغې بلې کوټې مخې ته ودریږه.
دروازه یې بیرته وتړله د ګلان ترڅنګ کیناست:
ـ ډوډۍ دې خوړلې ده؟
ـ هو.
ـ چای مای څه شی خورې؟
ـ یه.
ـ ګوره ډاریږه مه، ماخو پیژنې زه دلته قوماندان یم، زما له امره پرته مرغۍ هم پر نه شي وهلای، څوك به ګل هم درپورې نه کي.
بندي سترګې راپورته کړې په ناباوري یې ورته وکتل.
قوماندان دده د ډاډ لپاره پسې زیاته کړه:
ـ په ما باور وکه، غولوم دې نه، زما خبره خبره ده، چې درته ومې ویل څه نه درته وایم بس سرې سترګې ګرځه .
لاس یې وراوږد کړ د هغه بې ساه لاس یې په لاس کې ونیو وې ویل:
ـ پکت (فقط) ماته قناعت راکړه، ولې کمونیست شوی وې؟
ـ زه کمونیست نه یم پاك مسلمان یم.
ـ بسلمان به یې یا به نه یې خو ماته کمونیستي راوښیه.
بندي په تعجب ورته وویل:
ـ څنګه یې دروښیم زه زه ....
قوماندان یې خبره په خوله کې وروچه کړه:
ـ په څنګه منګه دې نه پوهیږم ماته صاف بیان وکه، سم سیي

(صحیح) راته وو ایه چې سړی څرنګ کمونیس شي.

بیایې پورته د کوټې بازوانو ته وکتل داسې لکه چې شماري یې، پسې زیاته یې کړه:

ـ هو ماته وښیه چې سړی څرنګه کمونیس کیدای شی، څرنګه د ګناوو په کولو کې بې باکه واوسي.

بندي په ټیټ غږ وویل:

ـ زه والله که پې پوهیږم څه به درته ووایم.

ـ والله که پوهیږم، والله که پوهیږم د سپي زو، زه درته وایم ماته لاره راوښیه او ته ځان خلاصوې.

بیا ورنږدې شو سترګې یې تنګې کړې لاس یې د هغه په اوږه کیښود.

ـ ماته لاره راوښیه، چې سړی څرنګ کمونیس شي، څرنګ بې خوده شي او په دې باور پیدا کړي چې نه سوال شته نه ځواب، لکه چې دلته پوښتنه نشته هلته هم نشته.

چې بندي څه ونه ویل، دی شاته ولاړ دیوال ته داسې ودریده لکه یوم، متې او سر یې په دیوال پورې ښتې او پښې یې له دیواله لرې ایښې وې په ارامه لهجه یې وویل:

ـ ووایه مه ډاریږه، ستا غږ له ما پرته هیڅوك هم نه اوري، په ما باور وکه، ما جذب که، ماته قناعت راکه. داسې څه راته ووایه چې زړه مې پې قرار شي.

له دیواله بیرته دکوټې د غولي منځ ته راغی، د بندي په اوږو یې لاس کیښود ویې ویل:

ـ ترتا مې قربان کړې، هیڅ چرت مه خرابوه، څوك به چپ هم درته ونه ګوري، هغسې چې زه درسره کمك کوم ته هم کمك را سره وکه ما له دې عذابه وباسه.

چې بندي په تعجب او پوښتنې په ډول ورته وکتل ده ورته وویل:

هو دا څو شپې مې یوناپیژندل شوی عذاب ځوروي. خلك ما یو بختور سړی بولي. چې قدرت لرم. پیسې لرم. ښځې لرم. او هرڅه لرم خو دوی خبر نه دي چې په ما څه تیریږي.

په ژړغوني غږ یې پسې زیاته کړه:

ـ دوی څه خبر دي چې په ما کې وینه وچه ده. ورځ خو لا ښه ده، اوف زما شپه دې خدای نامې بنیادم ته نه ورویني. دا هم زما ګناه ده یو وخت مې ویل کاشکې ورځ نه وای سر او کال شپه وای، هغه وخت مې د شپې کارجوړ و، دا قدرت او هستي چې وینې ټول مې د شپې په لاس راوړي ځکه مې شپه خوښیده.

خواوس، اوس چې شپه رانږدې کیږي زه وایم کاشکې مړشوی وای.

بندي ته یې د کیناستو اشاره وکړه پخپله هم بندي ته مخامخ کیناست لکه چې خبره یې هیره کړې وي، تندی یې په لاس ټینګ ونیو څو شیبې چوپ و، لکه چې یوڅه ورپه یادشوي وي.

سریې را پورته کړ:

ـ هو ورځ ، ورځ ښه وي. دا ژوندي خلك وینم او ددنیا له شرمه زه هم ګرځم. امرونه کوم. پیسې ګټم. او د ژوند لپاره نوي فکرونه کوم.

خو شپه. اوف شپه.

ښی لاس یې موټی کړاو تندي ته یې تکیه کړ:

ـ د شپې بل وړ خوبونه وینم. داسې ځورونکي خوبونه چې خدای دې ترې وساته.

ددروازې خواته ولاړ دروازه یې خلاصه کړه. چې وې لیدل څوك نشته بیرته یې وتړله. ګلان ته نږدې کیناست په ټیټ غږ یې ورته وویل:

خوبونه نه دي خپسې دي. تمامه شپه مې په خوله بلا لاس را

ایښی وي، چیغې مې څوك نه اوري رنګ رنګ بلاوې وینم. ډاریږم. زړه مې چوي.

بندي چوپ و. هیڅ یې نه ویل. قوماندان هاشم ته ځیر و.

د هاشم ده ته پام نه و، په کوټه کې یوې بلې خواته ګرځیده. بیرته راغی د بندي مخې ته په پلتۍ (چارزانو) کیناست:

- پخوا به خلکو ویل ښیښکې دینداره او ښه خلك ځوروي، نو ته وایه چې دینداره خلك ځوروي نو بیا له ما څه غواړي ما ولې نه پریږدي؟

بندي سر وښوراوو، چې نه یې د نفې مانا لرله نه د تائید.

قوماندان لګیاوو:

کاشکې یوازې ښیښکې وای رنګ رنګ بلاوې په رنګ رنګ جامو کې راځي

ملا صاحب وایي چې دا د دغو مړو ارواوې دي چې ما وژلي دي، چې ورته وایم څه وکم، وایي خیراتونه وکړه، خیراتونه مې وکړل غوایي مې حلال کړل پسونه او وزې مې حلالې کړې.

بلاوې کمې نشوې اوس خو لا د غویو او وزو په جامو کې هم راته راځي.

قوماندان له جیب څخه د نسوارو ډبی راویوست په کیڼ ورغوي کې یې واچاوو د ښي لاس په یوه ګوته یې له شاو خوا سره راټول کړل:

- ملا هم رینښتیا وایي. هغه خلك چې ما وژلي دي. د شپې ډله ډله راځي، چیغې وهي نه پوهیږم څه وایي. څه غواړي؟

نسوار یې خولې ته واچول په ډکه خوله یې وویل:

- مړه خوځه کوې. هغه ژوندي چې د ورځې مې له سیوري ډاریږي د شپې هغه هم راځي او ما ځوروي.

نسوار یې یوې خواته تف کړل وې خندل:

- بیګا د ولي محمد مور په تورو کالو کې راغله ترستوني یې ونیولم چې هرڅومره زور مې کاوو ځان مې نشوای ترې خلاصولی.

نه پوهیږم په هغه جان (جهان) به مې څه حال وي.

په دې دنیا خو د هیڅ شي په خوند پوه نه شوم، نه ډوډۍ نه میوه هیڅ شی خوند نه راکوي بس هسې خیټه ډکوم.

دا بله ښځه مې هم اوس ترپام بده ده، بس لکه بلا چې وینم.

قوماندان همداسې لګیا و، دې ته یې پام نه و چې مخاطب یې خبرې اوري که نه، بس داسې ګڼه و لکه چې د عمرونو عمرونو ورك شوی دوست یې پیدا کړی وي ورته د خپل زړه غوټې پرانیزي.

په شونډو یې نرۍ موسکا ښکاره شوه ګلان ته نژدې شو وې ویل:

- هو ریښتیا په دې ټولو تیارو کې یوه رڼا هم شته که یې لاس ته راوړم شپې به مې رڼې شي.

قوماندان خوله په خوند سره خوځوله، داسې لکه چې په خوله کې یې شیرینی یا بل خوږ څه وي، ژبه یې په دواړو شونډو راتیره کړه وې ویل:

- یو وار مې لیدلې ده، زړه مې پسې تللی دی څرنګه یې چې نوم خماره ده، هغسې خمارې سترګې لري، جمعه الدین مې مخې ته نشي دریدلای، حتمًا یې لاس ته راوړم که نه وي ....

خپله خبره یې همدلته پرېښوده. ګلان ته یې نیغ وکتل:

- ولې څه نه وایې؟

څه ووایم صیب.

قوماندان یې سترګو ته ځیر شو.

- دا ووایه چې ته هم لکه زه داسې ډارونکي خوبونه وینې؟

- یه

قوماندان هاشم په ناباوري سره وویل
ـ رښتیا وایې؟
ـ دغسې خوبونه مې تراوسه ندي لیدلي.
ـ اپرین، ولې دې نه دي لیدلي؟
ـ نه پوهیږم.
ـ قوماندان خپل څټ وګراوو، په خوشحالۍ یې وویل
ـ زه پوهیږم ، زه پوهیږم ته ځکه دا خوبونه نه وینې او ځکه نه ځوریږې چې ته بې باوره یې. که باور هم لرې هغه د بلې دنیا په نشتوالي باور دی.
بیایې وپوښتل:
ـ دغسې نه ده؟
ـ یه.
ـ تا څومره خلك وژلي دي؟
ـ ما؟
ـ هو ووایه څو کسه دې تر اوسه وژلي دي. شمېر یې درته معلوم دی که زما غوندې یې؟
بندي په زاریو وویل:
ـ والله که مې څوك وژلي وي.
ـ زه له تا تحقیق نه کوم تحقیق داسې نه وي. هرڅومره دې چې وژلي دي هغه ستا کار دی ماته دومره ووایه چې د چا اروادې ځوروي که یه؟
بندي سرټیټ اچولی و لنډ ځواب یې ورکړ:
ـ یه.
ـ بس ما ته همدا راوښیه چې څنګه سړی ځان له عذابه خلاص کړي.
بیایې په زاریو ورته وویل:

ملايانو ته ورغلم. زيارتونو ته ولاړم. خيراتونه مې وکړل په شپو شپو ويښ پاتې شوم. بيا هم هغه عذاب هغه تورې بلاوې. اوس يوازې ته پاتې يې.

بندي پوښتنه وکړه:

ـ نو زه غريب به څه وکم؟

ـ ته راسره کمك وکه ما له عذابه خلاص کړه داسې لاره راوښيه چې ستا غوندې نور زه هم بد بد خوبونه ونه وينم.

بندي وويل:

ـ زه به څه ووايم؟

قوماندان بد بدورته وکتل. لکه چې په کتلوکې وايي:

ـ له تا هم څه شی جوړ نه شول.

خودا خبرې يې له خولې را ونه وتلې. بندي يې تر ګريوان ونيوله ځايه يې په شدت سره راپورته کړ په بل لاس يې د هغه ستونی ټينګ ونيو:

ـ ووايه ژر راته ووايه. ولې سم دم نه راته وايې؟ دا هم ټول له بې غيرتي نه وايې په زړه کې ډيرې خبرې لرې.

بندي هيڅ ونه ويل. آن د هغه له لاسونو څخه يې د خپل ستوني د خلاصولو هڅه هم ونه کړه هماغسې غلی ولاړ و. هغه د چا خبره چرت يې هم نه خراباوو. خو قوماندان يې په دواړو لاسونو په ستوني زور راووست:

ـ وايې که نه ها؟

له دې سره يې د ګلان سر په سختۍ سره په ځمکه وويشت په خېټه يې پښه کېښوده. غړ يې نور هم قهرجن شو داسې چې ګلان ته يې پوهيدل هم ګران و. بله پښه يې د هغه په ستوني کېښوده د ګلان سترګې زيږې راوختې.

هغه سپین پړی یې چې څو شیبې د مخه د بندي لاسونه او پښې ورباندې تړل شوې وې راواخیست. قات یې کړ. د بندي په وهلو یې پیل وکړ. کله به یې په ملا کله په پښو واهه. بندي یوازې زګیروی کاوو.

چې ښه ستړی شو پړی یې لرې وغورځاوو د دروازې خواته ولاړ بیرته راوګرځید ګلان یې ترستوني ونیو راجګ یې کړ.

ـ نه وایې ها؟

له دې سره یې د سوکانو او لغتو په وهلو شروع وکړه. ترګریوان یې ونیو د کوټې له دیوال سره یې وواهه.

ـ غیږ یې ورکړه په څمکه یې راوویشت.

بې له ځنډه یې بیرته راجګ کړ په ټول قوت یې سوک ورخطا کړ په پوزه یې وواهه. د بندي له پوزې وینو داره وکړه.

# ځوارلسم څپرکی

د وانه ښارګوټي په اډه کې موټر نه ول. ملوك يوه هوټل ته چې د لرګيو په تختو او سطرنجيو پوښل شوی و، ورغی. چای يې راوغوښت. د څنګ سړي له خبرو پوه شو چې هغه هم په خپل موټرکې وطن ته ځي. ترې ويې پوښتل:

ـ د لارې ملګری دې پکار نه دی؟

ـ ولې نه خو ....

ـ خو مو مه پکې پيدا کوه. که په موټر کې ځای لرې زه به هم درسره ولاړ شم. چې ډيره مې سودا ده.

ـ ځای شته. خو خبره داسې ده. چې له ما سره په موټرکې مړی دی شپه په لاره کوم. د حکومت طياري ګرځي چې موټر ووينې بمباري پرې کوي که ته راسره ځې دا خو به لاښه شي.

د چای له څښلو وروسته يې. تابوت د موټر په شاتنۍ برخه کې کيښود او روان شو [illegible] ملوك لومړی خبرې نه کولې. خو د قوماندان سيد محمد له خبرو پوه [illegible] ې له مړي سره د خپلوي اړيکې نه لري يوازې د هغه د ګروپ راکټ [illegible] ، چې څو ورځې د مخه په جګړه کې ټپي او بيا د پاکستان په يوه ر [illegible] ن کې وفات شوی دی

ملوك له جيب نه د سګريټو قوطی راويوست سيد محمد ته يې ونيو.
سيد محمد ورته وخندل سګريټ دی که سګرټی؟

یه سګریټ دی زه د سګرېټو عادت نه لرم. یوازې په سفرکې مې ساټ پرې تیر وي. سید محمد له جیبه د چرسو ټوټه ورکړه ملوك د چرسو تلی میده کړ سګریټ یې ترې ډك کړ. اوس نو تیاره ماښام و او ددوی ډاټسن (پایکپ) موټر د لویو غرونو په منځ کې لاره وهله. قومندان سید محمد هم په لاره د شپې کولو خبره هیره کړې وه. د موټر ټایپ سندره غږوله. دوی دواړو نور دا هیر کړی و. چې شاته د مړي تابوت پروت دی او هغه هم یو وخت ددوی د مورچل ملګری و. ټوکې وې خنداوه د چرسو دودونو د موټر سیټ په سر اخیستی و. قومندان سید محمد خو به نسوار هم تر خپلو پښو لاندې توکول. ده ویل که د موټر ښیښه خلاصه کړي لوګی وزي او بیا به په د غو لږ چرسو ښه نشه نشي.

ده ژر ژر خبرې کولې ملوك ته یې د خبرو نوبت نه ورکاوو. په جګړه کې په خپلو کارنامو غږیده بیایې ورو ورو خبرې شخصي کیسو ته ورسیدې هریوه خپلې خاطرې بیان کړې سید محمد د خپلې زوړرتیا بیلابیل داستانونه بیان کړل بیایې په دغو نږدې غرو کې په لومړي مرکز کې د خپلو زړورتیاوو په باب ډارونکې کیسې وکړې

ـ څه څه مو ونه لیدل په اول کې زمونږ مرکز ددغه غره په ډډه کې په یوه پخوانی زړه کلا کې و. په هغه وخت کې زه د اوس غوندې قوماندان نه وم د شپې مې پیره کوله نیمه شپه وه توره تیاره وه یو تور وزګوری راغی خدای شته ډیر ترې وډار شوم یوځل خومې زړه و چې ډزې پرې وکړم

ـ ښه نو بیا؟

ـ بس خو ورمنډې مې کړې وزګوری مې په غیږ کې را واخیست او شاته مې واچاو. د مرکز په لوري راروان شوم په لاره ښه خوشحاله وم سباته به یې حلال کړو...

- افرین بیا مو حلال کړ؟

- ته صبر د ومره اسانه یې هم مه بوله په دې وخت کې که ګورم د وزګوړی پښې په ځمکه ځکیږي ګبنهي. واخیستم چې شاته مې وکتل وزګوړی نه وو. یوه لویه توره بلا وه.

- وای!

- بس نو په هغه سات مې خوشی کړ او په منډه د یوې ډبرې شاته کیناستم که ګورم چې یوه توره بلا د یو جګ سپیدار غوندې زما په لړري راروانه ده.

- توبه مې دې وي خدایه.

- کلاشینکوف ته مې مرمۍ تیره کړه او په ضربه مې ودراو. بلا زما په خوا راروانه وه له تا یې څه پټه کم د شا په خوا مې را چاریار کړل زبون مې وهل شوی و. نور مې په پښوکې د تللو توان نه و. د یوې بلې ډبرې شاته پټ شوم. خو بلا سوکه سوکه زما په لوري راروانه وه. کله به وړه شوه کله غټه. توره شپه وه نور اندیوالان ټول ویده وه. له ځانه سره مې وویل چې ترې خلاصیدای خو نشې نو کلاشینکوف مې پې ضربه کړ....

- افرین د نر زو.

- بس چې کلاشینکوف مې پې ضربه کړ د بلا له خولې داسې چیغه ووتله چې تر اوسه مې په ټول ژوند کې نه ده اوریدلې بلا نوره هم پسې اوږده شوه یوې بلې خواته تاو راتاو شوه ...

- په دې وخت کې (ملوك) د موټر د شا له ښیښې نه وکتل چیغه یې له خولې ووتله.

سید محمد په وارخطایی پوښتنه وکړه:

- څه خبره ده لکه چې وډار شوې؟

ملوك چې د شا ښیښې ته یې کتل وویل:

ـ م ... م . م . م مړې ...

سيد محمد چې د موټر باډۍ ته وکتل له خولې يې چيغه ووتله

ـ خير خدايه دا خو مړی را پورته شوی دی اوس به څه کوو؟

ـ هله موټر تيز که.

ـ د موټر ښيښه پورته که چې له دې خوا را نه شي.

موټر يې نور هم تيز کړ نور يې د سرك لوړو او ژورو ته پام نه کاو (ملوك) د موټر دروازه ټينګه نيولې وه. موټر دومره تېز و چې ځان يې نشو ای تکيه کولای. يوځل خو موټر له سرکه بلې خواته شو او نږدې و چې چپه شوی وای خو بيرته يې سرك ته سم کړ.

(ملوك) شاته وکتل مړی نور هم ددوی خواته رانږدې شوی و. د لاس په اشاره يې سيد محمد وپوهاوو. موټر نور هم تيز شو. د موټر د مينځ د څراغونو اشارې يې مړې کړې.

(ملوك) د سترګو له کونجونو بيا شاته وکتل مړی ولاړو. او په دواړو لاسو يې د موټر د سيټ بام نيولې و. په دواړو خولې را ماتې وې. يوځل خو د (ملوك) سر د موټر له چت سره ولګيده.

شاوخوا تپه تياره وه اوس دوی د غره له تنګي راوتلي ول. څه شيبه وروسته (ملوك) وويل.

ـ ترخوبه په دشتوکې منډې وهو تراوسه لا مانبام دی ګهيځ هم ډير لرې دی.

ـ نو څه کوو؟

ـ نه پوهيږم.

ـ نه پوهيږې نور مې په لاسوکې دمه نشته. موټر دې زده دې؟

ـ نه.

له دې سره يې موټر نورهم چټك کړ خو د ملوك زړه طاقت ونه کړ بيا يې ورته وويل

ـ اخیر چیرې ځې؟ چې موږ ځو مړی هم را سره ځي. چیرته به ترې خلاص شو.

سید محمد ورته وویل:

ـ اخیربه انشاء الله موټر یوځای چپه شي او که خدای کول دواړه به پکې مړه شو.

له دې سره یې موټرته بیا ایکسلیټر ورکړ موټر داسې و، لکه چې په هوا ځي. ملوك چیغې وهلې:

ـ مه مه مه ته څه کوې؟ ځان دې له غاړې دی که څه؟ اوس به موټر ګړنګ ته واچوې.

ـ څه وکم اخیرڅه لاره لرو؟ بیا یې سوړ اسویلی وایست: هی هی څه بې ځایه مړشوم.

ځو شیبې غلې و بیا یې په ډك ستوني وویل

ـ بې عقل یم خر یم. په شپه کې ځوك مړی بل ځای ته وړي؟

د موټر د سیټ بام په هیبت ناك آواز ودربیده. ملوك په لړزیدلي آواز وویل:

ـ مړی بام ټکوي. بل کار به وکړو.

ـ څه کار؟

ـ وبه تښتو.

ـ سیدمحمد ترځنګ ورته وکتل:

ـ د خدای ساده ځان په دغو خبرو خوشحاله وه. له مړي تښتیدی شې؟ چیرې به ځې؟

ـ د موټر دروازې به خلاصې کړو په رفتار کې به دواړه ځانونه غورځار کړو او په یوه خوابه منډه کړو.

ـ هوم دا خو دې بده خبره ونه کړه. خو دلته نږدې کلي نشته. تردې کنډو چې واوړو دغه چل به وکړو.

د موټر د سیټ بام هماغسې په درز او.

چې له کنډو تیر شول دواړو په یوه وار له موټره ټوپ کړل. شاته یې ونه کتل د شمال په لوري یې منډه کړه. سید محمد شاته وکتل له خولې یې چیغه ووتله هغه لیدل چې مړی کفن په سر په دوی پسې منډې وهي. د سید محمد له پښې یوه څپلۍ لویدلې وه بله ده پخپله وغورځوله. دوی نور شاته نه کتل. کله به ولویدل بیرته به راپورته شول. په کلي کې د سپو غپا ددوی لپاره لوی زیری و. چې کلي ته نږدې شول په زوره زوره یې چیغې کړې.

ـ مسلمانانو د خدای پار دی.

خود کلي له خوا کوم ځواب نه اوریدل کیده. دوی هماغسې په منډو ول او چیغې یې وهلې. د کلي منځ ته رسیدلي ول. له شاو خوا کورونو سپو ورته غپل.

کلیوال راووتل یوې بلې خواته چیغې شوې. د یوې کلا له برج نه خو چا ډزې هم وکړې سید محمد د خلکو منځ ته ورمنډه کړه:

ـ مه مه مړ م مړی....

د کلي خلک پرې را ټول شول. خو دده له خولې نامفهومه خبرې راوتلې. چې څوک نه وربانده پوهیدل. په دې وخت کې ملوک هم را ورسیده. خلک په هغه ورټول شول په وارخطایي یې ورڅخه پوښتنې پیل کړې:

ـ څه خبره ده؟

ـ له کومه راغلئ؟

کلیوالو پرله پسې پوښتنې کولې:

ـ تاسې څوک یاست؟ چېرې ځئ؟

خو په ځواب کې یې یوازې ام. م. م. ړ. ړ. اوریدل چې هیڅوک نه

ورباندې پوهیدل. د ملوك هم زبون وهل شوی و. ترخوله یې غر نه خوت یوازې یې شاته اشاره کوله.

له هغې خوا مړي منډې راوهلې. خو اوس یې کفن نه و اغوستې یوه کلیوال ځوان پرې ډزونه وکړل. مړی په ځمکه ولوید. خلك ورغلل له نورو کورونو هم ژراغونه راووتل. نږدې ټول کلیوال راوتلي و. ټول د مړي په خوا ورغلل. هغه د کلي مخ ته په وچه ویاله کې پروت و. معلومه شوه چې په کینه پښه لګیدلی دی.

څو کسو راواخیست او جومات ته یې یووړ. سید محمد او ملوك جومات ته نه تلل. سید محمد د شا په خوا زورونه وهل:

ـ نه نه هغه هغه م، م مړی دی.

یوه کلیوال په غوصه ورته وویل:

ـ وشه مړ نه دی. هسې مازې په پښه لګیدلی دی.

ـ نه. نه. نه مه مه مړی .... دی ز ززه نه ....

خو خلکو په زور د جومات په خوا تیله کړل. دواړه .... د جومات د دروازې ترڅنګ پریوتل

یوه د زخمي پښه تړله. زخمي زګیروی کاوو. دوی دواړو په ډار ډار ورته کتل. ملوك او سید محمد یو بل ته کتل او په کتلو کتلو کې یې له یو بل نه د پیښې وضاحت غوښت. نه پوهیدل چې څه پیښ شوي دي. سید محمد زړ نازړه. د زخمي خواته وروڅکیده. له لرې یې پرې ژغ کړ:

ـ روزي خان یې؟

چا ځواب ورنه کړ. سید محمد بیا وویل:

ـ زوی مړیه ته خو مړوې.

زخمي په غوصه وویل:

ـ پلار به دې مړ وي. مړی په موټر کې پروت دی

سپین ږیري زخمي ته مخ ور واړاوو:
- نا ، ته له دوی سره نه وې؟
- ولې نه وم ددوی په موټر کې وم
ملوك ورته وویل:
- دا ته څه ګډې وډې وایې کله له موږ سره وې.
- ما په هغه بل کلي کې لاس درکړ. خو تاسې موټر ونه دراوو ، د هغه پټم خواته تاسې موټر سوکه کړ ما هم د موټر منځ ته درټوپ کړ.
سید محمد وویل:
- په موټر کې مړی و.
- هو زه هم د مړي خواته کیناستم.
- ښه نو بیا؟
- بیا چې تاسې موټر تیز که. زه هم وډار شوم چه ونه لویږم. چې هرڅومره مې تاسې ته چیغې وهلې او موټر مې ودرباوو تاسې په لا موټر تیز که.
- چې مونږ موټر ودراو او دې خواته م رامنډې کړې تا ولې منډې راپسې وهلې؟
- نو تاسې ولې منډې وهلې؟
- موږ له تا منډې وهلې. موږ ویل مړی را ژوندی شوی دی.
زخمي وخندل:
- ما ویل تاسې کوم څه لیدلي دي ما هم له همدې ویرې منډې وهلې.
ټولو وخندل.
سید محمد څټ وګراوو . په جومات کې په پرتو سل [۱] وښویې ځان بوخت کړ. له ځان سره ږبونګیده.

[۱] سل وابنه د شولو وابنه دي چې ځینې په جومات کې د فرش کار ترې اخلي

ملوك لړ په غوصه ورته وويل:
ـ نو تاخه بلا غوښتله چې له موړ سره په موټر كې سپريدې؟
ـ زه د خپلې خور كره تللى وم. بس ما ويل چې خپل كلي ته ځان ورسوم
سپين ږيري په ډاډينه ورته وويل:
ـ خيردى بلا وه بركت يې نه و.
د ډوډۍ له لوښ سره يوځاى د چاى پتنوسونه هم راوړل شول او دوى غلى د ډوډۍ په خوړلو لګيا شول.



د ملوك د ماما كلى د غره په لمنه كې و. دى په اټكل تر دې ځايه را رسيدلى و په يوه نيم كوركې د سپي غپا اوريدل كيده. خوشيبې د كاريز په غاړه كښناسته سيرته د باغچې له ديوال سره روان شو. د سهار رڼا په خوريدو وه د آغا محمد د كلا مخې ته د لوخ كاريز په غاړه ودريده نه پوهيده څه وكړي. كه دروازه وټكوي او ناڅاپي ورسره مخامخ شي څه به پيښ شي خوشيبې وروسته د لويې دروازې د شا ځنځير د خلاصيدو غږ واوريدل شو. يو د تيتيې ونې سرې راووت. په لاره داسې روان و. لكه چې بوټونه يې په پښو كې آزاد وي او كوښښ كوي له پښو يې ونه ايستل شي. ملوك وپيژاند. له ځانه سره يې سوكه وويل آغا محمد ماما. آغا محمد دده په لوري راروان و. ملوك د كاريز د پاټ بلې خواته كيناست آغا محمد ګودر ته كوز شو. اودس يې وكړ. په څادر يې خپل مخ او لاسونه وچ كړل. له جيب نه يې ساعت راويوست په لاس يې وتاړه.
ملوك هم ورو ورو دده په لوري ور روان شو. چې ورنږدې شو پرې غږ يې كړ

ـ ما ما!

آغا محمد بیوې بلې خواته وکتل. ملوك یې ولید خو ویې نه پېژاند

ملوك چې ورنږدې شو ژړا ته په نږدې غږ یې وویل:

ـ ما ما ته یې؟

ـ ته څوك یې ها ګوا مانا څوك یې؟

ملوك له هماغه ځایه پرې غږ کړ:

ـ زه ملوك یم ما ما!

آغا محمد په وارخطایي او شکمن انداز ورته وویل:

ـ ملوك؟ کوم. کوم ګوا مانا څه وایې کوم ملوك؟

ـ زه یم ما ما ولې مې نه پېژنې:

او له دې سره یې په آغا محمد غېږ را تاو کړه.

آغا محمد زړه نا زړه غېږ ورکړه په روغبړ کې یې په وارخطایي ورته

وویل:

ـ والکه ته څوك یې. دا څه سره وایې؟

ځان یې لږ ترې لرې کړ او څیرې ته یې ځیر شو.

ملوك ته ژړا او سلګیو د خبرو مجال ورنکړ یوازې یې وویل:

ـ ما ما. ما ....

آغا محمد رډ رډ ورته کتل.

ملوك خوریی یې؟ خدایه دا څه وینم.

ـ ما ما!

آغا محمد بیا نښکته پورته ورته وکتل

ـ توبه مې دي وي خدایه ته خومې وې. لا اله الاالله محمدرسول الله.

دا څه وینم.

او له دې سره یې ملوك بیا ټینګ په غېږ کې ونیو

ښه ساعت دواړو په غیږو کې سره نیولي ول. خبرې یې نه کولې یوازې یې د سلګیو آواز اوریدل کیده.

آغا محمد ورو ورته وویل:

ـ یا خدایه پاکه دا څه وینم.

بیا یې په خیر خیر ورته وکتل:

ـ راځه راځه چې کورته ولاړشو.

دواړه د کور په لوري روان شول.

میرمن یې په دالان کې د چای په تیارولو بوخته وه چې له آغا محمد سره یې بل سړی ولید د تناره په غاړه کیناسته مخ یې پټ کړ.

په نیمکش پلو یې ددوی خواته راوکتل. حیرانه وه چې خاوند یې ولې ونه ټوخیده هسې نه چې کوم خپلوان یې وي.

دا په دې سوچونو کې وه چې آغا محمد پرې غږ وکړ:

ـ ښځې زیرې مې درباندې...

خوناڅاپه یې خپله خبره پرې کړه. پخپل ذهن کې په مناسبه خبره پسې ګرځیده هسې نه چې د ملوك ژوندیتوب او راتلو یو له یوه غږ ورباندې بل ډول تاثیر وکړي.

خپله خبره یې داسې پسې تکمیله کړه.

ـ راځه کوټې ته راځه چې له نوې خوشحالي دې خبره کړم میرمن هماغسې د تناره په غاړه ناسته وه.

په دوی پسې راغله خود دالان په وره کې ودریده. آغامحمد په بیړه بیرته راووت.

او په آرامه لهجه یې وویل:

ـ ښځې چه نه اورې هغه به واورې

ـ څه خبره ده؟

ـ ملوك خوريې ژوندی دی.

ـ دا څه وايې؟

ـ راځه وې ګوره.

میرمن یې هیڅ ونه ویل ځای په ځای کیناستله.

آغامحمد منت پرې وکړ:

ـ جګه شه ولې دې ویاښې ووتې؟

ـ وی، سړیه

ـ څه بلا ووهلې جګه شه ګوا،مانا ورشه پوښتنه ورسره وکه.

ښځې په ناباوري وویل:

ـ ریښتیا وایې دا ملوك دی؟

ـ نو څه غلطوم خودې نه.

ښځې په ساده ګي وویل:

ـ ابله ورځ یې قبر ته ورغلې وم قبر یې روغ جوړ و.

آغا محمد په غوصه ورته وویل:

ـ ډیرې خبرې مه کوه ګوامانا ورشه پوښتنه ورسره وکه ګوا مانا مړ راژوندی شوی دی.

چې په کوټه رانوت په موسکا یې ملوك ته وویل؟

ـ هیڅوك نه مني چې ګوا مانا ته ژوندی یې. مامی دې هم هکه پرانه سوه.

میرمن یې راغله له ملوك سره یې روغبړ وکړ.

په لړ شیبه کې د شیدو چای او په پلاستیکي قاب کې کوچ راوړل شول خو ملوك ونه خوړل یوازې یې یوه پیاله خوږ چای سور کړ.

☆ ☆ ☆

ملوك له خوبه را پاڅېدلی و. لوخ سر پخپل ځای ناست و. یوځل بيا يې کوټه ترنظر تیره کړه. مخامخ د یوې ګردې هنداري ترڅنګ د آغا محمد د ځوانۍ عکس راځړيدلی و چې کیڼ لاس يې په سينه ايښی و. او د کورتۍ په جيب کې يې قلم او يو بل لرګی چې ښايي مسواك به و. له ورايه معلومیدل. د عکس د چوکاټ په لرګي د وريښمو سره شنه ژېړ ګلان تومبل شوي ول.

ترې لاندې دوه صندوقونه ايښي ول يو يې ساده کوچنی و. او بل يې تر هغه لوی ښکلی و. چې څو کاله د مخه آغا محمد له هندوستانه راوړی و. د کوټې په بل ديوال جای نماز او ترڅنګ يې يوه رپيده او شکور چې منځ يې د وريښمو او زرتارو په ګلانو ښکلی شوی و. دا د آغامحمد د ميرمنې د واده يوازېنۍ نښه وه. هغې به د کوټې له جارو کولو وروسته يوځل د خپل پلوپېڅه پرې را تيرولـه.

ملوك ديوال ته ډېره ووهله او د شکور او رپيدې په ګلانو کې يې سترګې خښې کړې وې. سوچونو پسې واخيست د فکر باز يې لرې لرې غرونو ته پرواز وکړ.

لکه چې د شکور او رپيدې ليدلو يې بيا پخوانۍ خاطرې وريادې کړې هغه وختونه ورياد شول چې په زړه کې به يې له خمارې سره د واده ګوړې ماتولې.

ترخه موسکا يې وکړه ځان ورته ساده معلوم شو په اسويلي يې وويل.

بنده لرې ننبلولې مرګي لار ورته نيولې

دی په همدې سوچونو کې و. چې دروازه خلاصه شوه. آغامحمد و. ملوك تر بالښت لاندې سپينه خولۍ راواخيسته په سر يې سمه کړه آغا محمد له دروازې پرې غږ وکړ.

ـ خوريې ګله خوب دې وکړ؟

ـ هو داسې ويده وم چې په دنيا هم خبر نه وم.

ـ ښه شو چې را ويښ شوې ګوا مانا ډوډۍ تياره ده، زموږ زړه نه کيده چې راويښ دې کړو.

په لږ وخت کې ډوډۍ راغله او ټول د ډوډۍ په خوړلو لګيا شول آغا محمد به ملوك ته په ځير ځير وکتل بيابه يې سر وښوراوو لکه چې اوس يې هم باور نه وي چې ملوك دې ژوندى وي بې وارە يې وويل:

ـ رښتيا چې ځوك خداى پاك نه وي وژلي ګوا مانا نه مړکيږي.

د ډوډۍ په سر آغا محمد ورڅخه پوښتنې پيل کړې.

ملوك په خبرو راغې.

ـ زه هم دې ته فکر وړې يم، چې ولې يې وژلم، اوڅنګه ژوندى پاتې شوم.

ـ ګواه ما نا چې تا هغوى وژل، خود به هغو ته هم وژلې، خو دا را ته ووايه چې څنګه ژوندى خلاص شوې او تر پاکستانه څنګه ورسيدې؟

ملوك شميرلې شميرلې خبرې کولې:

ـ خبره داسې ده چې زه دښمن نه يم ويشتلى.

آغا محمد په حيراني پوښتنه وکړه:

ـ نو چا وويشتلې؟

ـ مداشم.

ـ دا څه وايې ريښتيا؟

ـ هو نوڅه دروا غ خونه وايم.

ـ آغا محمد په نا باورۍ او تعجب وويل

ـ دا څنګه نوولې؟

ـ نور زه هم نه پوهيږم. که رښتيا درته ووايم زما هم جنګ ته چندان

زړه نه کیده، څه روسان خو نه ول. دوی هم مجاهدین ول. او موږ هم.
اخیر جنګ و. که مې زړه و. که نه. جنګ مې کاوو. موږ بیخي سره نږدې
شوي و. زه او هاشم دیوه دیوال شاته پټ وو.

آغا محمد چوپ و. سر یې ټیټ اچولی و. ملوك وویل:

ـ له هرې خوا ګولۍ اوریدې. جنګ زیاتي ختمیده د ګولیو ډزونه لږ
شوي ول. هاشم له مانه لرې شو پخپلو ګناهګارو مې ولید چې لاسي بم
یې زما په لوري ګوزار کړ. نور زه ونه پوهیدم چې څه پیښ شول

ـ ښه نو بیا؟

چې په هوش راغلم په موټرکې وم. ټول وجود مې په وینو ککړ و.
موټر د غرو په منځ کې روان و. له خولې مې چیغه ووتله. یو چا مې په سر
لاس کیښود چې سترګې مې ور واړولې د جان محمد زوی محمد خان و.
راته وې ویل آرام وکه ښوره مه. چې وینه دې زایه کیږي. تر شفاخانې
پورې لږ ځای پاتې دی.

ـ موږ ویل چې هغه هم له هغه جنګه وروسته بیا چا ونه لیده ښه
کیسه کوه.

ـ په شفاخانه کې محمد خان ټوله کیسه راته وکړه. هغه هم هاشم
لیدلی و. چې بم یې زما خواته را ګوزار کړی و.

چې نور مجاهدین تللي ول. ده زه د هغه کلي په ډاټسن کې پاکستان
ته ورسولم.

آغا محمد په نصیحت سره وویل

ـ ګوره هلکه د محمد خان خبرې مه منه. هاشم به ولې داسې کار کوي
چې ګوامانا خپل ملګ ی پخپله مړ کړي. محمد خان پخپله له هاشم سره
جنجال لري. څو وار . هاشم په کور کې لیدل شوی دی

ملوك وویل

ـ نه نه ماما. هاشم ما پخپلو سترګو ولید چې بم یې زما په لوري راګوزار کړ.

آغا محمد په نا باوري وویل:

ـ عجیبه ده. ته وا هاشم به ولی دا کار کړی وي؟

ـ نه پوهیږم.

ـ آغامحمد یوه ټوټه ډوډۍ په لوښي کې لمده کړه او پیشو ته یې واچوله وې ویل:

ـ په هغه ورځ خو دی تر ټولو زیات خواشینی مالومیده.

ـ ما ما دا ته نه پیژني. ما ډیروخت ورسره تیرکړی دی محمد هاشم لکه ګیدړه داسې دی.

په دهلیزکې له زانګونه د ماشوم د ژړا غږ پورته شو د آغامحمد میرمن زړه نازړه له کوټې ووتله.

آغامحمد وویل:

ـ اوس د خبرې بیخ ته ورسیدم چې ګوامانا هاشم ولی دا کار کړی دی. جامه دین غریب یې تر دوو سپیږمو رسولی دی.

ملوك د پوښتنې په ډول ورته وکتل:

آغامحمد زیاته کړه:

ـ د جامه دین دې کور ودان وي نه زور ته تسلیم شو نه زرو ته. جنګی هم مرګ مني خودی نه. یو وار خویې زهر هم خوړلي ول خو خدای ژوندی پاتې کړه

# پنځلسم څپرکی

ددوی د لیدو وعده غرمه مهال ټاکل شوې وه خو ملوك لاځان سهار وختي چې ټول خلك په درانده خوب ویده ول د جمعه الدین باغ ته را رسولی و.

ده پرون د خپلې ماما د لور په وسیله خمارې ته د خپل راتګ احوال رالیږلی و، هغې هم نن په باغ کې د لیدو وعده ورکړې وه.

د جمعه الدین باغ چې له کلا سره یې ګډ دیوال درلود نسبتاً لوړ لوړ دیوالونه یې لرل. سره له دې چې د انګورو زیاتره تاکونه یې وچ شوي ول او یوازې څو د زردالو او منې ونې او له دریو دېوالونو سره د سپیدارو ونې پکې ولاړې وې. خو جمعه الدین یې د پخوا په څېر کلکه ساتنه کوله د پخوا په شان یې وره ته اوسپنیز زوړ قلف اچول شوی و. ددیوال په هغو ځایونو چې سرونه یې وران شوي او ټیټ شوي ول. د سنځلې او نورې اغزنې لښتې لکې کړې وې.

باغ ته د اوبو د لارې په سوري کې یې هم لرګي درولي ول. د باغ په دروازه کې یوه کوټه جوړه شوې وه. دا کوټه په اصل کې د باغ د ساتنې لپاره جوړه شوې وه. ې دوی به څاله بلله. خو له جګړو د مخه دا کوټه یو ستر دوکان و. چې جمعه الدین به له همدې ځایه انګور. زردالو او منې په نورو دوکاندارانو باندې پلورل

ملوك د همدې کوټې د بام له لوري د شپې باغ ته ورواوښت او د باغ په شمال ختیځ کونج کې د انګورو د یوه زاړه تاك ترڅنګ چې شاوخوا يې څو د منو اوسپیدارو ونې ولاړې وې غلی کیناست.

او د خمارې د راتلو شیبې يې شمارلې، ده ته دانه وه معلومه چې د کلا د باغ د لوري په دور پورې بامونه نشته، ځکه خو يې ډیر کوښښ کاوه، چې له هغې خوایې څوك ونه ويني او خپل د ناستې ځای يې هم د ونو بل پلوته جوړکړې و.

ده ته لاپرون د ماما د لور په وسیله ډاډ ورکړشوی و، چې باغ ته هیڅوك هم نه ورځي، یوازې مازدیګر مهال د خمارې کشر ورور پسونه او وزې باغ ته ورولي او له ونو څخه پاڼې ورته راتویه وي، غرمه لا نه وه رارسیدلې، چې د باغ د کوټې د وره د ځنځیر غږ يې واوریده، د ملوك زړه په ټوپونو شو. نه پوهیده څه وکړي، مخې ته ورمنډې کړي او خماره په غیږ کې ونیسي او که ځای په ځای کیني.

له یوه عجیب حالت سره مخامخ شوی و، چې نه يې د خوشحالۍ نوم ورکولې شو او نه د خواشیني، د زړه درزا يې پخپله اوریدله بهتره يې وبلله په خپل ځای کیني. د ونو له شایې دواړه سترګې د باغ په وره کې خښې کړې وې.

له بنګړو ډك لاس يې ولید چې د باغ دوهمه دروازه يې خلاصه کړه.

خماره وه، چې د باغ په وره کې هکه پکه ولاړه وه. که څه هم له ملوك څخه لرې وه. خو هغه يې په څیره کې د ژور بدلون نښې ولیدلې. ونه يې ترپخوا لوړه ورته ښکاره شوه او نرۍ غاړه يې نوره هم نرۍ ورته ښکاره شوه.

د سترګو ښکلا يې د پخوا په څیر نه وه. غټې غټې سترګې يې لویدلې وې جګه او نرۍ پوزه يې نوره هم جګه شوې وه.

د ملوك په سترګو كې اوښكې راغلې. زړه یې و. د خمارې مخ ته په چیغو چیغو وژاړي.

د هغې ځای په ځای درېدو یې په زړه كې شك پیدا كړ. هسې نه چې له شاېې نورڅوك وي. كه ځان ځرګند كړي ښایي بل څوك یې هم ووینې. هماغسې پخپل ځای كې ناست و.

خو خماره هماغسې ځای په ځای ولاړه وه. لكه چې د هغې زړه هم نه منله چې مړ یار دې یې راژوندی شوی وي. دده په لوري را روانه شوه. څو ګامه مخ ته راغله بیا ودریده.

د ملوك زړه طاقت ونه كړ. له ځایه را ولاړشو او ورو ورو د هغې په لوري رهي شو. ویریده چې خماره به دده په لیدو له خوشحالۍ چیغه وكړي او ټول به خبر شي.

خمارې دده په لیدو یوازې وویل

ـ ته ؟

ـ هو خمارې زه یم. د مینې فیصله پخپله مینه كوي. خدای پاك دتا لپاره نه یم وژلی.

خو د هغې خبرې ځای په ځای هك حیران ودراوو

ـ چې مړ وای ترديې به ښه وه.

خمارې په ټیټ غږ دا وویل او مخ یې بلې خواته واړاوو.

ملوك هیڅ ونه ویل. خمارې بیا په ډك ستوني وویل

ـ ته ته څه خبریې چې په. په ما .. ما ... څه ...

خو ژړا د خبرو مجال ورنه كړ. خبره یې په سلګیو كې وركه شوه

ملوك ورو وویل

ـ خمارې داسې مه وایه زما اړیكې اوس هم له مرګ سره نه دي شلیدلې هسې د ژوندو روزي تماموم كنې لا پخوا مړیم

خمارۍ پټ پټ ژړل

ملوک بیا وویل

- اوچې ته هم داسې خبرې راته وکړې نو بیا به دې توفانو ته ځنګه تم شم.

دواړه د باغ په کونج کې دونو شاته کیناستل.

چوپ ول. ملوک په ځیرځیر او حیراني ورته کتل خو خمارۍ په لرګي ځمکه ګرواله دی د هغې چلند هك پك کړی و. نه پوهیده له کومه ځایه یې شروع کړي. اوخه ووایې. داسې معلومیده لکه چې پخپل راتګ پښیمانه وي.

د دواړو زړونه له بې شمېره ګیلو ډك ول. خو په سترګو کې یې د دیدن تنده وه.

ملوك ورو وویل:

- څه خو ووایه ولې داسې غلې ناسته یې.

خمارۍ چې ځمکې ته یې کتل په شرمناك غږ وویل

- څه به ووایم. ما خپلې خبرې له اوښکو سره کړي دي.

ملوك لکه چې ددې خبرې د اوریدو هیله نه لرله. نیغ ورته وکتل پخپله بې وسي یې ژړا راغله سترګې یې تنګې کړې. لاندې شونډه یې په غاښ وچیچله.

خمارۍ وویل

- شکر چې ته ژوندی راغلې

ملوك د انګور له وچ تاك نه کوچنۍ لښته را پرې کړه دوه درې ځایه یې ماته کړه. دوه ټوټې یې ایسته وغورځولې په بله یې په ځمکه کې کرښې وړې کرښې راوایستلې. کرښوته یې په ځیرځیر کتل. لکه چې خپل فال پکې ګوري بیرته یې سر راجګ کړ

ـ خمارې ما نیت کړی دی چې دواړه ولاړشو.

ـ چیرې؟

ملوك په پریکړو الفاظوو ویل:

ـ هلته چې ډار نه وي، هلته چې وکولای شو له یوبل سره مینه وکړو، له دې ځایه ډیر لرې.

خمارې په حیرانۍ وپوښتل:

ـ ته څه وایې؟

ـ په ما او تا ټولې لارې بندې دي، دواړه پاکستان ته ځو او هلته نوې ژوند شروع کوو.

ـ له واده وروسته؟

ملوك وویل:

ـ هی هی سر دې سوی بوی یې نه دی درغلی، هغه زما په سیوري پسې ګرځي، که خبرشي چې زه ژوندی یم او دلته راغلی یم وینه به مې ځمکې ته پرې نه ږدي. په دې حال کې واده کیږي؟

ـ ستا زړه دی چې په سپینو پایڅو درسره ولاړه شم؟

ـ هو نو څه، له پردي سره خو نه ځې. نکاح شوېده او زما په نوم یې.

خمارې مخ بلې خواته واړاوو او وې ویل:

ـ تر اوسه هم داسې شوي دي، چې پښتنه پیغله دې په تورپیکي په سپینو پایڅو د پلار له کوره وتلې وي؟

ـ ملوك په نصیحت وویل:

ـ ګوره مجبوریت هرڅه کوي. که زه او ته له دې ځایه ونه تښتو هاشم به نورې بلاوې په موږ راولي. آبا دې هم له هغه ډاریږي او هیڅ نشي کولای.

ـ نو هلته به ترې خلاص شو؟

ـ توکل په خدای. پاکستان ته ځو. هلته د تنظیم په دفتر کې د ما ناسکه ماما کار کوي. له هغه وسلې اخلم او دلته بل مرکز جوړوم بیا به ته هم ووینې چه څه کوم.

او چې خمارې څه ونه ویل. پسې زیاته یې کړه:

ـ بس نن شپه له خیره ځان تیار کړه.

ـ نن شپه؟

ـ هو.

خماره زړه نازړه وه، ښه شیبه غلې وه.

د ملوك په غږ لکه چې له خوبه را پاڅیدلې وي، له واره یې وپوښتل:

ـ تاپه دې باره کې سوچ کړی؟

ـ وایې نشته داسې لوری چې وروتنبتي کمزوری په موږ ټولې لارې بندې دي.

ـ ښه نو بیا بله شپه.

ـ سمه ده بله شپه به زه د باغ شاته د ګنهو ونو خواته درته انتظاریم.

دوی په دې باره کې چې څنګه او له کومو لارو پاکستان ته اوړي خبرې وکړې.

د خدای پامانې په وخت دواړه خوشحاله معلومیدل داسې لکه چې خپل ارمان ته رسیدلي وي.

# شپاړسم څپرکی

په هغه ماښام خماره په عجیب حالت کې وه، هغه د چا خبره نیمه نیمه ویښه ویده وه. غیر عادي کارونو یې مور هم شکي کړې وه د غوا رالوشل یې هیر کړي و.

په ورو ماشومانو یې تر بل هروخت زیاته مینه کوله. کوچنی ورور یې خو ځله ښکل کړ او ورسره ویې ژړل هغه یې کوله په کوټه کې یوازې وي. کله به چې یوازې شوه له ځانه سره به یې پټ پټ ژړل خو بیرته به یې ژر اوښکې پاکې کړې، او په یوه غیر ضروري کار به لګیا شوه.

کوښښ به یې کاوو له مور سره سترګې په سترګو نه شي.

ډوډۍ یې د معمول خلاف وختي تیاره کړه.

سر پرې ګرځیده. لکه چې ډیره بې خوبه شوې وي پخپل ځای داسې اوږده وغځیده لکه چې غواړي ترسهاره ویده شي له سترګو یې اوښکې جاري وې. د تیکري په پیڅه یې اوښکې پاکې کړې.

له دې ویرې چې خوب پرې غالب نه شي. پخپل ځای کې کیناسته چې یوه شوه نور ویده دي. له ځایه راولاړه شوه. د ګوتو په سرو د کوټې بر کونج ته ولاړه د صندوق شاته غوټه یې را واخیسته په دروازه کې یې کیښوده ښه شیبه هلته ودریده

خپلې جامې یې ټینګې نیولې وې. د شپې په تیاره کې د مور خواته

راغله. د هغې ترسر ودریده. بیاېې د کوچنی ورور مخ ښکل کړ داسې لکه چې په ښکاره چیرته په سفر ځي.

د کوټې دروازه یې بې غږه غوږه خلاصه کړه. د ګوتو په سرو د لویې دروازې په لوري روانه شوه.

سپی په چوتره کې کونج ته پروت و. سر یې راجګ کړ له ځانه سره وغوریده. بیرته یې سر پخپلو پښو کیښود.

آسمان شین و او چوپتیاخوره وه دا چوپتیا به کله کله د کلي د سپو غپا ماته کړه.

خمارې د کلا له دروازې یوځل بیا د کور په لوري وکتل لکه چې وروستی خدای پاماني ورسره کوي.

زړه یې راډك شو. خو ویې نه ژړل. د دروازې ځنځیر یې په سختۍ سره خلاص کړ.

دباندې هیڅوك نه تر سترګو کیدل. دروازه یې په ځان پسې پورې کړه شاوخوا یې وځارله. ښه یې وبلله چې همغلته ودریږي. څو شیبې هلته ودریده ملوك یې ونه لید.

څه وکړي مخ ته ولاړه شي؟ که مخ ته ځي چیرته ولاړه شي او که بیرته کورته ځي. څوك به پرې خبر شي.

د ګوتو په سرو د غواوو د اخورونو په لوري روانه شوه د مخامخ ونو خواته یې وکتل وډاره شوه. د یوه اخور ترڅنګ غلې کیناستله.

ښه شیبه ځای پرځای ناسته وه. د کلي د یوه نیم سپي غپا به یې په زړه کې نوې هیلې راپیدا کړې.

ـ هغه به راروان وي. او سپي به هغه ته غاپي

د سپو د غپا لوري ته به یې وکتل خو هیڅوك یې نه لیدل د خپلې کلا سپي یې هم وغپل.

خوشحاله له ځایه را ولاړه شوه. ورو ورو د بڼ په لوري روانه شوه. د سپي غپا ډېره ژر غلې شوه دا پوهېده چې د سپي په زیاته غپا به څوك راویښ شي، او په شپه کې به د دوی له وتلو خبر شي خو بیا هم پرې خوشحاله وه چې سپي وغاپي او پخپله غپا د ملوك د راتلو زیری ورکړي خو سپي بیا ونه غپل.

خماره د باغ د دیوال له کونج سره ودرېده، د باغ شاته د ګڼو ونو څړاته هیڅوك نه معلومېدل.

د شا له خوایې د چا د پښو څرپهار واورېده، شاته یې وکتل څوك نه وو، خود پښو څرپهار اورېدل کېده، شاوخوا یې وکتل هیڅوك نه معلومېدل.

په زړه یې ګبنهی ګډه شوه، یخنی نه وه خو دا ټوله لړزېدله. داسې لکه چې چا په ژمي کې سړې اوبه پرې تویې کړې وي.

زبون یې ووهل شو، نه یې چیغه کولای شوه، او نه هم کومې خواته تلای شوه.

ځانته یې غوصه راغله. یوې خواته د تلو وس یې هم په ځان کې نه لیده. ژړا ورغله یو ځل یې بیا د ګڼو ونو په لوري وکتل.

ونې ترپخوا لوړې لوړې ورته وبریښېدې.

کلمه یې وویله ((لا اله الاالله محمد رسول الله)) یا خدایه. یا خدایه.

پرده.

اوله دې سره یې د دروازې په لوري منډه واخیسته د دروازې ځنځیر یې بند نه کړ په یوه منډه یې ځان کوټې ته ورساوو. اوپخپل ځای کې تسیا وسیا پریوتله.

☆ ☆ ☆

ملوك په لاره یوځل بیا پخپل تصمیم کې سوچ وکړ. او راتلونکی پلان یې ترشوندو لاندې تکرار کړ. د خمارې لیدلو او د بلې شپې د تیښتې په وعدې سره یې د خپل جوړ کړې پلان ترسره کیدل لیدل.

له ځانه سره یې وویل:

ـ چې خماره بوځم او واده ورسره وکم. دا هم له هاشم څخه یو لوی غچ اخستل دي. نورې خبرې به خدای اسانه کړي.

ملوك لا د ترخې په دښته نه و ورګډ شوی چې د ماما زوی یې ولید چې دده په لورې په بیړه را روان دی، وپوهیده چې کومه بده پیښه شوې ده، خپل ګامونه یې نورهم ګړندي کړل د ماما زوی یې له لرې چیغې وهلې:

ـ مه راځه ودریږه چې څوك دې ونه ویني.

ملوك ځای پرځای ودریده چې سلام رانږدې شو پوښتنه یې وکړه:

ـ څه خبره ده؟

سلام په ستړې سا وویل:

ـ د هاشم کسان راغلی دي په تاپسې ګرځي.

ملوك په وارخطایې وپوښتل:

ـ تا ولیدل؟

ـ یه ما نه دي لیدلي لا لا ویل چې دوه کسه راغلي ول. له حسن نه یې د تا پوښتنه کړې وه

ـ دا څه وایې؟

ـ هو لالا ویل چې دلته مه راځه. د تا له راتګه خبر شوي دي ځان یوې خواته وباسه.

ملوك او سلام دواړه د کاریزونو د سپرغو په خوا روان شول څو شیبې یې هلته دمه جوړه کړه.

ملوك سلام ته مخ راواړاوو:

ـ چې داسې ده، نو ته ځان کورته رسوه. ماما ته ووايه چې زما اندېښنه مه کوه زه شپه د شيريني ابۍ کره رسوم.

کلاشينکوف يې له ځمکې راپورته کړ په زنګنو يې کېښود.

ـ ماماته ووايه چې دا هم راسره وړم. نور توکل په خداى. کلي ته راتلاى نه شم.

ملوك نيت وکړ چې شپه د خپلې ترور کره چې له دې ځايه نږدې ۲۰ ـ ۲۱ کيلومتره لرې وه تېره کړي او سبا شپه خپل پروګرام عملي کړي.

خو ښه يې وبلله چې د ترور کره د غره له لارې ځان ورسوي.

د کاريز ترخنګ د غره په لوري روان شو. مازديګر مهال غره ته ورسيده.

درې تنه وسلوال کسان يې ترسترګو شول، د يوې ډبرې شاته کيناست. وسله وال کسان يوې کندې ته ښکته شول، ملوك بيرته له ځايه راولاړ شو. څو ګامه لانه و تللي چې يوبل وسله وال يې وليد. وسله وال د ډبرې شاته هغې نرۍ لارې ته څير و. چې د غره په منځ کې تېره شوې وه. او د ملوك دوى ګروپ به له هماغې لارې په خرو او کچرو وسلې راوړلې.

ملوك هم د يوې ډبرې شاته کيناست. ناپېژندل شوي وسله وال د ډبرې ترخنګ مورچل نيولى و. ملوك جرأت ونه کړ چې نږدې ورشي هسې نه چې د هاشم له کسانو څخه وي.

لاره يې چپه کړه. او د غره په ډډه کې مخ ته ولاړ.

نرۍ لارې ته نه ورسيدلى چې له لويديځ لوري پرې ډزې وشوې يوه ګولۍ يې خواته په ډبره ولګيده.

ملوك ژر د يوې وړې ډبرې خواته کيناست. نورې ډزې هم پرې وشوې. ملوك چيغې کړې:

ـ هاى څوك ياست ډزې مه کوئ.

دی پوهیده چې دلته دحکومت کسان نه راځي

سره له دې چې دا د بل قوماندان ساحه وه. خو له ده سره دا ویره وه هسې نه د هاشم کسان په ده پسې راغلي وي ده خپله خبره تکرار کړه خو چا ځواب ورنه کړ او ډزو هماغسې دوام درلود.

ملوك نږدې شاوخوا وڅارله. کیڼې خواته یې په لس متري کې یوه لویه ډبره وه. خو ورتلای نه شوای ځکه له هر خوا ګولۍ باديدلې.

ملوك د همدغې ورې ډبرې ترڅنګ ناسته خوره وبلله.

څو شیبې وروسته د ډزو شدت کم شو. اوس نو خال خال ډزې کیدې ملوك نه پوهیده ډزې وکړي که نه. که وېې کړي په چا ډزې وکړي.

ده نه پوهیده له چا سره مخامخ دی. تراوسه ټول هغه وسله وال کسان چې ده لیدلي و. په شخصي جاموکې و. نو ښه یې وبلله چې ډزې ونه کړي. هسې نه چې ټوپك پخپلو وچلوي.

ملوك د لويې ډبرې په لوري منډه واخیستله څو ګامه نه و تللي چې له ښکته بیا ډزې پرې وشوې ځای په ځای کیناست. د پټید وهیځ ځای ورته نږدې نه و. بیرته یې د ډبرې په لوري منډه واخیستله. د ډبرې تر شاه پټ شو. په ډبره یې دا لیکل شوې لنډۍ ولوستله

وطـــن نیـــولی رانه. نـــشې

روسیه ولی ورانوې ودان کورونه

تردې لاندې په هماغه لیك لیکل شوي وو

اخـــیربـــه تـــه هـــم ورتـــه وایـــې

للوللوشه افـغـانـان راغلي دینه

د ډبرې درې خواوې بندې وې یوې خواته یوه بله ډبره وه. بله خوایې د غره هغې ډډې ته وه. چې ددښمن د راتلو ویره نه وه

ملوك دا ځای ښه وګانه او مخ ته نه ولاړ. خو ډزې هماغسې روانې

وې، دا ډزې يوازې په ده نه کيدلې. ده ليدل چې د غره په مخامخ ډډه کې هم ګولۍ لګيږي.

ملوک نه پوهيده څه وکړي. د وسله والو کسانو پيژندنه ګرانه وه، يوازې يې شاوخوا څارله.

د غره په کوزه ډډه کې د برديم زرهپوش او سرتيرو په ليدو وپوهيده چې راغلي وسله وال د حکومت کسان دي.

بې له دې چې پوه شي دښمنان چيرې ورته پټ دي، په ډزو يې پيل وکړ.

له ډزو سره جوخت له هرې خوا پرې د مرميو باران جوړشو. لکه چې په وروستيو ډزو سره يې نورو ته د پټيدو ځای معلوم شوی و.

ملوک د کلاشينکوف شاژور بدل کړ، اوس يې نو يوازې په ختيځ لوري چې زياتو بوټو او ځلرګو ددښمن د ليدو مخه نيولې وه ډزې کولې.

خو ډزې يې هم په حساب کولې، کله کله به يې نورو خواو ته چې د ډزو ځای به ورته معلوم شو ډزې کولې.

ويې ليدل چې له مخامخ لوري دوه کسه کوښښ کوي چې دده د مورچل په لوري راوخيږي، ملوک ډزې بندې کړې، دوه کسان چې کله به پټ شول او کله به ښکاره اوس نو دده مورچل ته رانږدې شوي و.

کله چې د کوچنۍ ډبرې له شا راپورته شول او دده په لوري يې منډه راواخيستله. کلاشينکوف يې پرې ضربه کړ، دواړه ځای په ځای ولويدل.

ملوک ته اوس دوه شاژوره مرمۍ پاتې وې، له دريم شاژور نه يې يوه ګولۍ وايستله، په جيب کې يې واچوله.

له څلورو خواو کلابند شوی و. د وتلو لاره يې هم نه وه.

ملوک اوس يوازې يوې خواته ډزې نه کولې. په وار سره يې هرې خواته شميرلې شميرلې ډزې کولې.

له لاندې لورې يې يو تن وليد . چې دده د مورچل په خوا د راختلو هڅه کوي، چې ښه ځيرشو ، ترشا يې دوه کسه نورهم ول. او د هغوی له شا دهشکې دده مورچل تراورلاندې نيولی و .

ملوك دا کسان وليدل، خو ډزې يې پرې ونه کړې، دهشکې د سر پورته کولو مجال نه ورکاوو . په همغه لورې يې ځو اټکلي ډزې وکړې.

ددوهم شاژور مرمۍ هم مخ په خلاصيدو وې، خپل ځای يې بدل کړ ، د همغې لوېې ډبرې څنګ ته پريوت، سره له دې چې د بوټو او ځارګو له خوا يې د ويشتل کيدو امکان لرې نه و . خو اوس يې کولای شول، چې خپله مخه وڅارې.

هغه درې تنه چې دده د مورچل په لور راختل اوس نه معلوميدل، ښايي کوم يو يې وژل شوی وي او يا هم بيرته شاته تللې وي.

دهشکې دده مورچل هماغسې تر اور لاندې نيولی و .

يو تن يې بيا وليد چې د مورچل په لورې د راختلو هڅه کوي، نشان يې برابر کړ، په يوه ډز سره يې په ځمکه وويشت له دې سره يو ځل بيا د مرميو باران پرې جوړشو ، ملوك لږ را په څټ شو ، له جيب څخه يې هغه يوه مرمۍ چې ساتلې يې وه را وايستله او په يو تش شاژور کې يې کينښودله، شارژور يې مخې ته کينښود . وروستی شارژور يې راواخيست او بيايې په ډزو پيل وکړ.

له هرې خوا مرمۍ پرې اوريدلې، بيرته را په شا شو . او له خپل پخوانې ځای څخه يې ډزې شروع کړې.

اوس يوازې يوې خوا ته متوجه و . خو يو يو ډز يې هرې خواته کاوو . د شا له خوا قهرجن غږيې تت ووت يو کړل.

ـ لاس پورته کړه .

ملوك چې شاته وکتل، يو بريتور افسر يې شاته ولاړ و . افسر بې له

ځنډه په ده حمله وکړه، کلاشینکوف یې له لاسه وغورځاوو. افسر په دې بسنه ونه کړه. په خیټه کې یې په لغته وواهه. ملوك په ډبره برسیره ولویده. سر یې په ډبره ولګید.

افسر او یوه بل عسکر بیرته له ځایه راجګ کړ، لاسونه یې پرې وتړل.

# اووه لسم څپرکی

ملوك د شكور د ظلمونو ډيرې كيسې اوريدلې وې ځكه خو يې د اسير كيدو په لومړيو شيبو كې يوازې د هغه نوم په ذهن يرغل كړی و.

مليشو او افسرانو هغه تر ۶۶ گاز موټر پورې په وهلو، وهلو راووست.

د ملوك لاسونه شاته تړلي ول، او د سر لوڅي موټر په لرگينه چوكۍ د ځوتنو ترمنځ ناست و، د موټر په جمپ سره به نورو ځانونه د موټر په رينگرارن باندې تم كړل خو ملوك به د موټر منځ ته را غورځار شو، نورو به په منت بيرته لرگينې چوكۍ ته پورته كړ.

خودده ويره يواځې له شكور څخه وه. په لاره كې يوازې د هغه په فكر كې و، په ذهن كې يې د هغه ځيره مجسمه كوله. سرې سترگې، سور مخ، په خوله كې پراته اوږده اوږده بريتونه. او له شكور سره د مخامخ كيدو فكرخو د ډار سخته لړزونكې څپه پرې راوسته.

په موټر كې د ناستو كسانو خبرو ته يې غوږ نيولی و.

هغوی د ننني جگړې په باب خبرې كولې. هريوه د خپلې زړورتيا كيسې كولې.

ملوك له ځانه سره وويل:

ـ خدای مو خوار كه. با فسلطين مو فتح كړی دی. ټول له يوه كس سره جنگيدئ. هغه مو هم په چل كې ونيو.

ملوك غوښتل ددوی له خبرو پوه شي. چې له ده سره به څه چلند

کوي. خو هغوی خپلې شخصي کیسې کولې. هریوه ځان د ننني جګړې اتل باله.

دوی داسې پخپلو منځو کې په خبرو ګرم ول. چې ملوك یې یومخ هیر کړی و. ملوك شاوخوا وڅارله. موټر په بې لارو لارو په تیزۍ سره روان و.

ځان یې سره سم کړ، چې له موټره ځان وغورځوي دی ویریده هسې نه چې مړ به یې نه کړې او ژوندی به یې عبدالشکورته ورسوي.

موټر له کلیو لرې په یوه لویه دښته کې لاره لنډه وله. ملوك ښه وبلله چې چیرته د کوم کلي خوا ته ځان له موټره غورځار کړي له ځانه سره یې ټولې لارې وسنجولې. له موټره لویدل دوه ګټې لري، یابه دوی وربانديې ډزې وکړي او وبه وژل شي. یا به په کلي کې ترې ورك شي. کلي ته بیا د حکومت کسان په اسانه سره نشي ننوتلای. خو موټر لا هماغسې په لویه دښته کې روان و، او دا ویره موجوده وه چې ژوندی یې ولایت ته ورسوي.

موټر د دیبانو د کاریز خوا ته ورسیده. ملوك همدا مناسب ځای وګاڼه. او نیت یې وکړ چې له موټر څخه د لویدلو سره سم ځان د کاریز سپرغې ته غورځار کړي.

له ځایه راولاړشو. مخ یې بلې خواته واړاوو. خو د شا له خوا چا په قنداغ ووهه:

ـ کینه د سپي زو، تا ....

یوبل وویل:

ـ مه یې کوه بې چاره سیل کوي.

ـ د سیل وخت یې لا پاتې دی.

اوله دې سره یې بل قنداغ هم ووهه. د موټر په شاتنۍ برخه کې ناست د ژیړې لونګۍ وال په سرتیري سترګې ور برګې کړې.

ـ بس چې نور يې ونه وهې.
ـ د تا څه خيال دی په اوږو يې سپورکم ها.
ـ رشيد ګله دا د تا کار نه دی.
رشيد په زوته وخندل.
ـ واه واه دا ټوپك مې لکه چې د ميلو لپاره په غاړه کې اچولی دی.
چې هغه څه ونه ويل په نصيحت سره يې ورته وويل:
ـ ګلاخانه وروره چې ټوپك، دې په اوږو وي يا به بل وژنې يا به بل تا وژني، ددې لپاره چې تا سوك (څوك) مړ نه کړي نو اول وار ته کوه.
ـ دا د نارينه کارنه دی.
رشيد په پسخند وويل:
ـ نو تا ښزې (ښځې) ليدلي دي چې ټوپك يې په اوږه کړی وي.
ګلاخان د کرکې په ډول مخ بلې خواته واړاوو:
ـ ښځې رحم لري خو ته يې نه لرې. د چا په ګوګل کې چې د غوښې زړه وي هغه ټوپك نه اخلي او اول وار هم نه کوي.
ـ نو بيا دې ولې په اوږه کړی دی؟
ـ دا هم مجبوريت دی.
رشيد ملوك په مخ وواهه:
ـ سم کينه د خره زويه.
يوه بل بريتور ځوان چې د موټر په مخکينۍ برخه کې ولاړ و مخ را واړاو:
ـ ګلاخانه ښې کوې. چې تا اوس له ځانه وکيل مدافع جوړکه.
ګلاخان خپله رنګه شوې پګړۍ سمه کړه ويې ويل:
ـ تربور ورور وي د هيڅ سپکه نه يې لوريږي. نه دې دي اوريدلي چې تربور مړکه لمر ته يې مه پريږده

ملوك په لومړي ځل ګلاخان ته وكتل، پخپل ذهن يې فشار راوړ، ويې پيژاند:

دا خو دعبدالمنان اكازوى دى، وايي پلاريې په كوم مارش (لاريون) كې د تره كي عكس نيولى و، او په هغه جرم يې ځو شپې وروسته وواژه، ګلاخان او بل مشر ورور كلاخان يې د عثمان خيلو په كلي كې د ماما كورته وتښتيدل او له هغه ځايه حكومت ته ولاړل.

كه د ګلاخان نوم چا نه واى اخيستى او هغه نه واى ويلي چې تربور ورو وي او د هيچا په سپكه نه لوريږي نبايي ملوك هيڅ نه واى پيژندلى.

ملوك د هغه په ليدو ډيرخوشحاله شو، زړه يې و، ورو لاړ شي او په غيږ كې يې ونيسي، ورسره وژاړي.

ددوى دواړو پلرونه يو وخت ښه انډيوالان ول، په ژمي به دواړه يوځاى پنجاب ته د مزدوري لپاره تلل او پسرلى به دواړه يوځاى راتلل.

ملوك او ګلاخان ته به يې نوې جامې راوړې.

ددوى كلي سره جلا ول، خو پټي يې پوله په پوله ول، دواړو به درمندونه يوځاى اچول، د شپې به په درمندونو كې ويده كيدل او ګډې سندرې به يې ويلې.

ـ اه څه وختونه و، خو ارمان چې قدر يې سړي ته نه معلوميږي.

تير خواږه وختونه يې د فلم د صحنو په څير د سترګو په وړاندې تيرشول.

ملوك دومره په تيرو وختونوكې لاهو شو، چې خپل ځان ترې هير شو، يو ډول پټ هوس يې په زړه كې په ټوپونو و.

د خوږو وختونو په باب فكر هم، د ښكلې خيرې او ښكلو منظرو د ليدو په څير سړى خوږو وختونو ته بيايي، او له زړه يې ټولې انديښنې او كينې لرې كوي.

ملوك هم په يو عجيب حالت كې و. د جومات د ملاصاحب خبرې وريادې شوې، فكر يې وكړ ښايې هغه حالت او كيفيت چې شهيد يې د مرګ په وخت كې د رڼا د يوې څرېكې په څېرويني اوس رارسيدلى وي.

د موټر له سيټ څخه د ټايپ سندرې بيرته اوسني وخت ته راستون كړ:

اى سـربـازه يـاره خيره په مورچل باندې

بيابه دې ويده كړمه سيورې د اوربل لاندې

ترڅنګ ناست كس يې په ټركه وويل:

اى سربازه ياره پټ شه تر بيلر لاندې

بيابه دې چوختو كمه ټاير د موټرلاندې

څوتنو په ټټكي وخندل، خو بيرته ژر غلي شول يوبل ته يې وكتل يوه ژبه راويستله لكه لويه غلطي چې ترې شوې وي.

يوه بل پرې غږ كړ:

ـ تاجيه اوس لكه چې شاعر هم شوې.

ـ شاعر ماير خو نه يم، هسې مې خولې ته راغله. شعرونه خو هغه څوك وايي چې ټوپك پيژني هم نه.

ټوپك ته يې په كركه وكتل ددواړو څنګنو ترمنځ يې پټ كړ.

ګلاخان غلې ناست و، نه يې د تاج محمد سندرې ته وخندل او نه يې هم دبـل پـه څير نارضـايتى وښودله. هغـه د چـاخبره ځـان يـې ناګومانـه واچاوو.

ملوك دواړه سترګې په ګلاخان كې خښې كړې وې. خو هغه يوځل هم ورته ونه كتل.

د هغـه وروستـى خبـرې يـې زړه ګـرو كـړى و. څـو واره يـې پـه زړه كـې وروګرځيدل. چې غږ پې وكړي، ورته ووايي زه ملوك يم ستا ملګرى يم. كه زما لاس ترلي ته خو ازاد يې، راشه راشه په غيږ كې مې ونيسه راشه راسره وژاړه.

چا موږ سره بیل کړي یو. راشه چې د خپلو پلرونو ارواوې خوشحاله کړو. د خپلو پلرونو په څیر ملګرتیا وکړو. ګډه مسافري وکړو. ښه کورنګ آسان واخلو او د پلرو په څیر سانګې ووهو. ډولونو ته وناڅو. په درمندونو او پالیزونو کې سندرې ووایو. شین خالۍ وستایو. نیم کنښ پلونه یادکړو. ګودرونه وستایو خیردي که توره شپه ده. توره خونه. شین خالۍ نه ده مالومه.

توره شپه به خدای سبا کړي

شین خالۍ به خدای پیدا کړي

راشه راشه غیږ راکړه. راشه چې بیرته د مینې او محبت ژوند شروع کړو.

د ټوپك له میله مه راته ګوره، سم راته وګوره، پخپلو سترګو راته وګوره.

ملوك یوځل بیا هڅه وکړه چې خپل لاسونه خلاص کړي لاسونو یې درد وکړ.

لکه نوی یې چې ځان ته پام شوی و. ځان ته یې وکتل او بیا یې ګلاخان ته وکتل. عجیبه ده د شیرخان د زوی لاسونه تړلي دي. او د منان د زوی په لاس کې ټوپك دی. د ژولیا خبرې وریادې شوې. عجیبه ده. عجیبه ده په دې وطن کې د څومره انسانانو لاسونه تړلي دي او څومره انسانان ټوپك په لاس مخامخ ورته ولاړ دي.

عجیبه ده. عجیبه ده.

ملوك یوځل بیا ځان او بیا ګلاخان ته وکتل پخپلو تیرو فکرونو بنښیماني ورغله:

ـ یه یه هیڅکله نه. زما لاس تړلي او د هغه په لاس کې ټوپك دی. که زه هغه ته د دوستي لاس غځوم دا به بې غیرتي وي. دا ژوند په دې نه ارزي چې چاته سرې سر ټیټ کړي.

اوس زما او د هغه یارانه نه کیږي.

چې له تاسره په قدبرابر نه وي د هغه سرې په څنګ کې هم مه درېږه.
د پلار دا نصيحت چې په وار وار يې ورته کړی و. وريادشو.

اوس ګلاخان ترما زورور دی. خير که زه او دی او زمونږ دواړو پلرونه سره ملګري ول. يه يه.

دا ژوند په دې نه ارزي. چې د هغه لپاره چاته سر ټيټ شي. دوه ورځې ژوند دی چې په سپيتانه يې تيروم په ميړانه به يې تيرکم.

په همدې سوچونو کې موټر د نيمه فوځي قطعې په نظام قراوول ورننوت.

په موټر کې سپرو کسانو له خپلو جامو دوړې او ګرځونه وڅنډل. مخې او شاته نور موټر او زرهپوشونه هم ودريدل.

د موټر ترڅنګ دوو افسرانو د ملوك په سر لانجه جوړه کړه.

يوه ويل ځارندوی ته يې ولم.

خو هغه بل نه منله. ويل يې رفيق شکور امر کړی دی چې ټول مجرمين بايد اول ده ته وروستل شي هر يوه پخپله ګټه استدلال کاوو.

ملوك چې د شکور نوم واوريده په زړه يې بيا لړزه ګډه شوه. هيڅ اميد نه و ورته پاتې. ګلاخان هم له موټره ښکته شو. هيڅ يې ونه ويل

ملوك په زړه کې خداي. خدای ياداوو. چې له شکور څخه بچ شي او بل ځای ته يې ولېږي.

ددواړو افسرانو لانجه روانه وه. خو يو بل افسر وويل:

ـ پرنسيب بايد مراعات شي. امنيت ته يې بوزئ بيابه يې ګورو.

د ملوك زړه وښويده. له ځانه سره يې وويل:

ـ اه اخير له هغه دوزخي سره مخامخ شوم

# اتلسم خپرکی

د ملوك د وړاندوینې په خلاف شکور له ونې لوړ چاغ سړی و، ږیره او بریتونه یې داسې پاك خریلي و، لکه چې ویښتان یې له بیخه ایستلي وي، ځای یې د غوږو او غاړې ویښتانو نیولی و. د غاړې ویښتان به یې زیاتره د سپین کمیس ترغاړو راوتلي ول، ټیټه پلنه پوزه یې په غټ سپین مخ کې ورکه وه، خو دواړه غټې شونډې یې داسې سرې وې لکه چې د شونډو رنګ یې پرې موښلی وي.

ملوك د همدې شیبې لپاره چې له شکور سره مخامخ نه شي څو ځله له موټر څخه د غورځیدو هڅه کړې وه له ځانه سره یې وویل:

ـ خدایه چې نه دې وژلم لکه چې دا ځناور دې را لیده.

سرتیري یوازې دومره وویل:

ـ صایب دا هغه اشرار دی، چې په کمین کې مو نیولی دی.

شکور تر شونډو لاندې وویل:

ـ توره موکړېده، یوازې یونفر؟ معلومه ده چې زمونږ ټول راپورونه په واقعیت بنا ندي.

سرتیری او بل افسر چې دمخه په دفترکې و. ووتل ملوك د دروازې خواته لاس تړلی ولاړ و. شکور د لوی میز شاته د کاغذونو په لوستلو بوخت و.

له ځایه راولاړشو، په میز یې یوځل بیا نظر تیرکړ په یوه کاغذ ورټینګ شو بیایې ملوك ته مخ ورواړاوو:

ښه ته د هماغه خوني اشرار هاشم د بانډ غړی یې؟

ملوك له ځانه سره وویل:

ـ وګوره عجیبه ده غلبیل کوزې ته وایي چې ته دوه سوري لرې، ځان ته یې پام نه دی خپل ځان ورته پاکه فیروزه ښکاري.

شکور په دفتر کې یوې بلې خواته وګرځیده، ملوك ته مخامخ ودریده ویې پوښتل:

ـ ښه تاسې څو نفره وئ؟

ـ یو خدای و، یوزه وم.

شکور په سړه سینه وویل:

ـ ځان مه تیروه، ووایه چې نورګروپ موڅه شو. وسلې او کچرې مو څه کړې؟

ـ زه یوازې وم.

ـ ته لکه چې ما نه پیژنې ها، دلته به اول ما ته اعتراف کوې.

ملوك خپله مخکینۍ خبره تکرار کړه.

شکور په بم غږ وویل:

ـ زما له انسانیته سو استفاده مه کوه، په شرافت دومره دې ووهم، چې د مرګ په ارمان شې پوه شوې که نه.

ملوك له ځانه سره وویل: عجیبه ده دې ته انسانیت وایي، د شکور راوتلو سترګو ته یې وکتل په عاجزۍ یې وویل:

ـ زه رښتیا وایم تکې تنها یوازې، په ....

خود شکور بې واره سوك یې په خوله کې خبره ور وچه کړه.

ـ زه ... زه ....

شکور نورو خبرو ته پرې نښود. له څیرې نه یې وپوهید چې په اسانه اقرار نه کوي. شکور د کشف او تحقیق په برخه کې درې کاله په شوروي اتحاد کې زده کړې کړې وې. او په دې برخه کې د تجربې خاوند بلل کیده. تراوسه پورې یې له رنګارنګ تاکتیکونو څخه په ګټې اخیستنې سره ډیر په خبرو راوستي ول. له هر زنداني سره به یې لومړی نرم چلند کاوو. که به یې اعتراف ونه کړ نو ډول ډول جزاګانې به یې ورکولې. دده تحقیق دریم پړاو هم درلود. په دریم پړاو کې به یې د خپلو او یا ترلاس لاندې کارکوونکو د ظلمونو له امله له بندي څخه بښنه غوښته. د هغه په غم او درد به یې ځان شریکاوو. آن ځینې وخت به یې ورسره ژړل هم. او بیا به یې په چل کې پرې اقرار وکړ. که به په کوم بندي دده دغو ټولو تاکتیکونو اثر ونه کړ او چوپ به پاتې شو. بیا به یې په شپه کې په دښته کې کندې ته بوت او د تل لپاره به یې چوپ کاوو. شکور به ځینو کله کله شکرودنف هم باله. معلومه نه وه چې دانوم ده په ځان ایښی و. که به خلکو له مسخرو باله.

د پخوا په خلاف نن له ملوك سره د شکور نرم چلند لنډ و. ډیر ژر دده په خبره په دا بله خوا راواوښت.

ملوك یې تر ستونی نیولی و:

ـ وایې که نه. ته لکه چې ما نه پیژنې. چې د طوطي غوندې دې په خبرو رانه ولم. خپل نوم بدلوم.

د ملوك ستونی یې پرینښود. همداسې مخامخ ورته ودریده. ملوك اوږده سا واچوله شکور په نس کې په سوك ووهه.

ـ که څه ونه وایې دا مرداره خوله به دې د تل لپاره له خاورو درډکه کړم او له دې سره یې د لغتواو سوکانو شروع پرې وکړله.

ملوك د دفتر د چای خوړلو په کوچني میز ورولویده.

د میز پرسر ښیښه یې سګرټ دانۍ ټوټې ټوټې شوه.

شکور غوریده نور یې څوك په خبرو نه پوهیدل.

د تیلفون زنګ وویل شو. شکور د میز خواته ورغی. په تیلفون یې لاس کیښود. غوږی یې راپورته کړ. له ساه ډك و خبرې یې نه شوای کولای ورو یې وویل:

ـ بلې!

شکور د تیلفون غوږی په غوږ کې تر میز راتاو شو. پخپله چوکۍ کیناست. له هغې خوا چا خبرې کولې خوده یواځې په ((ام)) ((ام)) ځواب ورکاوو.

او د ((سمه ده بیابه خبرې پې وکو)) په ویلو یې د تیلفون ګوشي (غوږی) کیښود.

ملوك ته یې چې د اوږده کوچ خواته ناست و بد بد وکتل تر میز لاندې زنګ یې وواهه یو دنګ سرتیری راننووت. شکوروویل:

ـ دا د لارینس زوی بوزه او غلام سنایي ماته راولیږه.

# نولسم څپرکی

د ملوك د پیدا كولو لپاره د قوماندان هاشم د كسانو هڅوكومه نتیجه ورنه كړه په لومړي سر كې فكر كیده چې هغه له سیمې تښتیدلی دی، قوماندان هاشم اغا محمد د كلا په برج كې بندي كړ اوس نو د ملوك د بندي توب او سیمې ته د هغه له راتګه ټول خبرشوي ول.

څو شپې وروسته قدوس د حكومت له خوا د ملوك د نیول كیدو خبر راوړ خو هاشم قدوس پټ پوه كړی و، نوروته وایي چې ملوك پخپله خوښه حكومت ته تسلیم شوی دی، دا خبره ډیره ژر په ټوله سیمه كې خپره شوه، سره له دې چې ملوك په مړو كې حساب شوی و، خو تربرونو یې لا تر اوسه د نجل، مال او جایداد د خپلولو هڅه نه وه كړې.

خو حكومت ته د ملوك د تسلیمیدو د خبرې په خپریدو سره د ملوك باغ قوماندان د ځان كړ او نور جایداد یې تربرونو په خپلو كې سره وویشه د كوز كاریز ملك یې د مخه گرو كړی و.

د سموت په خبره د ملوك پیغله نه بلكې ځمكه كونډه شوې وه.

خماره له هغې شپې راهیسې سخته ناروغه شوه مور به یې وویل چې د شپې په ډیران ډاره شوې ده. او له هغې شپې راهیسې پیریان پې كینستي دي، د خمارې رنګ ورځ په ورځ ژیړیده، په ډیرو زیارتونو یې وګرځوله، د مونه او تاویزونه یې ورته راوړل.

ځواونۍ يې پرله پسې روحاني بابا ته يووړه، د ډمانو د زيارت په سپرغه کې خو يې يوه شپه هم پې تيره کړه. خوحال يې تر پخوا بدتر شو
ښايې قوماندان هاشم د هغې له دې ناروغې څخه خبر شوی وي. ځکه خو يې له هغې سره د واده کولو خبره هيره کړې وه.

# شلم څپرکی

دوو سرتیرو ملوك د شكور دفتر ته راووست. خو داخل يې لاسونه نه وو تړل شوي. سرتيري له احترام كولو وروسته ووتل.

ملوك هماغسې ژيړ زبيښلی په دروازه كې ولاړو. په زړه يې لړزه ګډه وه. تر سترګو لاندې يې د شكور حركتونه څارل چې په تيلفون كې يې خبرې كولې د تيلفوني خبرو په وخت يې داسې لاسونه خوځول لكه يوې لويې غونډې ته چې وينا كوي.

چې خبرې يې خلاصې كړې له ځايه راولاړ شو له ملوك سره يې په لاس روغبړ وكړ. ملوك زړه نازړه لاس وركړ.

شكور چوكۍ ته اشاره وكړه ويې ويل:

ـ كينه.

ملوك لا ولاړ و. شكور يې په مټ لاس كيښود:

ـ كينه ولې ولاړ يې. زه پوهيږم. چې له تاسره ډير بد چلند شوى دى. ته مه خپه كيږه دلته هم د هاشم غوندې خون اشام افراد پيدا كيږي. د كړكۍ خواته ودريده پسې زياته يې كړه:

ـ د هغو په ځاى زه بخښنه درنه غواړم. دوى د انقلاب مطالبات په نظر كې نه نيسي مونږ ستا په باره كې ټول معلومات او اطلاعات ترلاسه كړل

موسکی شو ویې ویل:

ـ لیونیه تاخو داهم نه ویل چې د قوماندان هاشم چاره ستا ستوني ته هم رسیدلې ده.

ملوك له ځانه سره فکروکړ:

وګوره لیوه بیا د پسه پوست واغوست، عجیب خلك دي په هره جامه کې ځان جوړولی شي.

ترشړنډو لاندې یې د هغه ځواب ورکړ:

ـ کیږي نو، دنیاده، له کومه ظلمه به سړی وژاړي.

ـ نور نو له ظلم او ستم نه خلاص شوې، خوته به یو کار کوې.

د ملوك مخې ته ودریده ویې ویل:

ـ ودې نه ویل کوم کار؟ هغه د هاشم وژل دي.

ملوك په حیراني ورته وکتل.

ـ هو هم ځان د هغه له شره خلاص کړه او هم نور خلك ترې بیغمه کړه یعنې هم ثواب هم خرما.

په خندا یې پسې زیاته کړه:

ـ غزا دې ته وایي، تاهسې غلطه کړیده، ځنګه خوښه دې ده؟

ملوك ورو وویل:

ـ که ما وژلی شوای، دې حال ته به ولې رارسیدم.

ـ لیونیه هغه وخت یوازې وې، اوس یوازې نه یې، موږ ټول امکانات درته برابروو. او بیا چې په حکومت کې هم مقام او هرڅومره پیسې چې غواړې ترتا قربان. په غرور یې پسې زیاته کړه: لیونیه انقلاب له تا سره دی.

ـ زه دا کار نشم کولای.

شکور ټینګارکاوو:

ـ موږ ټول فکر کړی دی، یوازې ته یې چې هاشم وژلی شې او بس پټ دې هلته لېږو، په اساني یې وژلی شې، زموږ شبکې درسره کومك کوي.

ـ زه یې نه وژنم.

شکور په تعجب وویل:

ـ ولې؟

ـ بس.

دشکور په تنده کې کرښې پیدا شوې ویې ویل:

ـ وایي خر یې چیرې کشاوو او دی چیرې ته، موږ سمه لاره درښیو او ته لا نخرې کوې.

ـ دا سمه لاره نه ده، دا د میړانې لاره نه ده، چې د قیامت یوه ورځ هم پاتې وي زه غچ ترې اخلم خو داسې نه.

شکور په نصیحت وویل:

ـ ګوره که زموږ خبره ونه منې حال به دې ډیر خراب شي.

ملوك په زړه کې وویل:

ـ اوس خو مې حال داسې ښه دی، چې خراب به شي، تردې به لاڅه راباندې کوئ مړ به مې کړئ کاشکې مړ مې کړئ.

په خوله یې څه ونه ویل، هماغسې غلی په چوکۍ ناست و.

شکور د نصیحت په ډول څو نورې خبرې هم ورته وکړې خو ملوك ونه منله، شکور تر میز لاندې زنګ ټینګ کړ یو سرتیری راغی او دده په اشاره یې ملوك له دفتره ویوست.

د زندان په دروازه کې یې ګلاخان ولید په زړه کې یې وویل:

ـ اوس راپیدا شو.

خو ګلاخان ځان ناګاره واچاوو، ملوك یې زندان ته بوت

څـوشیبې وروسـته ګلاخـان دروازې تـه راوغوښـت. ترپوښـتنې دمخـه یـې ورتـه وویـل:

د تره زو مه خپه کیږه، که خدای کول یوڅه خوبه وکړو. لـه شـکوره مـه ډاریږه پخپله تبدیل دی نن یا سبا به ځي.

# یوویشتم څپرکی

د جمعې په ورځ ماسپښین مهال یې ملوك له زندانه راویوست، او د جیب موټرپه سورلي یې د فوځي قطعې ترڅنګ میدان ته چې دوی هوایي ډګر باله یووړ، ملوك د سرتیرو له خبرو پوه شو، چې په الوتکو کې یې کابل ته بیایې، د سرتیرو په منځ کې ګلاخان هم و، خو تر اوسه یې له ملوك سره خبرې نه وې کړې، افسر په میدان کې ګلاخان ته یوپاکټ ورکړ ورته ویې ویل:

ـ دا ډیره مهمه وظیفه ده، بې غوري نه ده پکې پکار، چې له الوتکې کوزشوې دا مکتوب به هلته ورکړې پوه شوې؟

ـ سمه ده.

ـ افسرپه ټینګاروویل:

ـ ډیربه متوجه اوسې، ته موځکه ورسره ولیږلې چې دا له تاسره هم کومك دی ورور به دې هم ووینې او چکر به دې هم شي.

ـ بس تاسې ډاډه اوسئ.

نږدې یو ساعت وروسته دوه هلیکوپتر له لرې را ښکاره شول هلیکوپترو په دښته ې دوړې جوړې کړې.

د کیناستو سره جوخت د ښارې بسونو په څیر بیروبار پرې جوړ شو. مسافرو سرتیرو او افسرانو او مامورینو هریوه تربل ځان مخ ته کاوو.

نورو سرتیرو مسافر له هلیکوپترو شړل، خو چا د هغوی منتونو او وهلو ټکولو ته پام نه ساته، چا به ویل: مور مې مړه ده، تیلګرام راغلی دی، چا ویل رخصتي مې دلته پوره شوه، هریوه پیلوټانو ته زارۍ کولې چې هلیکوپترته یې پورته کړي. دواړه هلیکوپتر له مسافرو ډك شول، ګلاخان او ملوك ونه شوای کړای چې ورپورته شي، ګلاخان هلته ولاړ افسرته وویل، افسر له دوو سرتیرو سره د پیلوټ په ملګرتیا هلیکوپتر ته ورپورته شول دري کسه یې راکوز کړل د هغوی د زاریو او کنځاوو پروایې ونه کړه ګلاخان او ملوك یې هلیکوپتر ته پورته کړل.

هلیکوپتر مازدیګر ناوخته د کابل په هوایي ډګر کې راکوز شول ګلاخان د مکتوب پاکټ له جیب څخه راویوست، په لاس کې یې واړاو را واړاو او بیرته یې په بل جیب کې واچاوو، ملوك ته یې مخ ورواړاوو.

ـ دتره زو راځه.

ملوك غلی پسې روان شو.

ګلاخان یې په مټ لاس کینبود ورته ویې ویل:

ـ خپه نشې لاسونه دې تړلي دي، خیر دی ته راځه.

دواړه په ټکسي موټر کې کیناستل، ډریور ته یې وویل:

ـ شارنو، کوچه ګل فروشي.

موټر د هغه سرای مخې ته ودریده چې د ګلاخان د ورور کوټه پکې وه. ګلاخان خپل بکس غاړې ته واچاوو ملوك ته یې وویل:

ـ راځه خدای دې وکي چې کلاخان په ځای وي. او چیرې تللی نه وي.

کلا خان او بل ملګرې یې په کوټه کې د دیګ په پخولو لګیاول.

ګلاخان یې په غیږ کې ونیو:

ـ شکر چې راغلې بیګا مې په خوب کې لیدې. ډیر په تشویش کې وم.

کلاخان تر ملوك هم غيږ راوګرځوله، خو ملوك غيږ ورنه کړه. ګلاخان حيران، حيران ورته وکتل، پوه شو. چې لاسونه يې تړلي دي.

په اشاره يې ګلاخان وپوښت:

ـ دا بندي دی.

کلاخان وخندل:

ـ نو زما په کوټه دې د بندي خانې ګومان کړی دی؟

ـ نا دا دشيرخان اکا زوی دی.

کلاخان په ناباوري وويل:

ـ رښتيا وايې:

ملوك ته يې ښکته پورته وکتل، ګلاخان ته يې مخ وروااړاوو:

ـ نو بيا دې لاسونه ولې پرې تړلي دي؟

ګلاخان د ملوك لاسونه خلاص کړل.

کلاخان بيا غيږ ورکړه.

ګلاخان ټوله کيسه ورته وکړه.

ـ ښه ښه عجيبه ده والله.

ملوك ته د ژوليا خبرې وريادې شوې عجيبه دا نه ده عجيبه داده چې يو انسان ولې د بل انسان اسير وي.

له ځانه سره يې وويل: عجيبه دا نه ده، عجيبه داده چې د شيرخان زوی د منان د زوی اسير دی. لاسونه يې تړلي دي.

# دوه ویشتم څپرکی

د زون مرکز ته د عبدالشکور د تللو د لارې امنیت لادمخه نیول شوی و، وسله وال کسان لا دشپې د لارې په سر د لنډمهاله پوستو د جوړولو لپاره تللي ول، په لاره کې د دوو غونډیو سرونو ته ټانګونه هم خیژول شوي. و دا ټول امنیتي تدبیرونه د قدوس د پروني رپوټ له مخې نیول شوي و. قدوس چې پرون په پټه د قوماندان محمد هاشم مرکز ته استول شوی و، خبر راوړی و، چې هاشم د شکور له حرکت څخه خبر شوی دی نیت لري چې د فوځي کتار لاره ونیسي.

سره له دې چې د زون مرکز ته د شکور د تلو پلان په پټه نیول شوی و، خو دا معلومه نه شوه چې هاشم څه ډول او چا خبر کړی دی.

قدوس د هغوی د کمین ځای هم ښودلی و، هغه داهم ویلي و چې قوماندان هاشم پرون ټولو ته ویل چې که شکور له سیمې ژوندی ووت نو دی به دښځې ټیکری په سرکوي.

د قوماندان هاشم ددغه کلك هوډ او سوګند په مقابل کې شکور کلك امنیتي تدبیرونه نیولي ول.

ده دخپل حرکت لوری له کلیو چپ کړ او یوې فوځي قطعې ته یې د هغوی د کمین پر سیمه د یرغل امر هم ورکړی و.

سهار ترلمانځه دمخه کتار وتړل شو. شکور له خپلو ساتونکو سره

په بې بى ۶۰ ډوله زرهپوش کې چې د کتار په پای کې روان و، سپور شو په دې کتار کې مخې ته دوه محاربوي ماشينونه ورپسې له سر تيرو ډك يو ۶۶ ډوله گاز موټر له هغه وروسته دوه جيپ موټرونه او ورپسې هم څلور زرهپوشونه شامل ول. چې سهار وختي يې په بيړه حرکت وکړ په خامه سرك د دوړو او لوگيو يوه لويه ليکه جوړه شوه، کتار له نيم ساعت مزل وروسته سرك پريښود او په دښتو سر شو، له همدې سره په کتار کې گډوډي هم جوړه شوه، کله به يو مخ ته شو کله بل، اوس نو په يوه ليکه نه و روان.

په لاره کې د جيپ موټر ټاير پنچرشو، ټول کتار ته د دريدو امر ورکړشو.

له دې سره له مخې ته پروت کلي څخه د ډزو آوازونه واوريدل شول.

څرگنده شوه، چې دمخه استول شوې قطعې په کلي يرغل کړی و، شکور ددې خبر په اوريدوسره خواشينې شو، څوتنه وسله وال يې دجيپ موټر لپاره پريښودل اوپاتې کتار ته يې دمخ ته تلو امر ورکړ.

کتارچې کله له غونډۍ واوښت د جگړې په منځ کې راگير شو له شاوخوا غونډيو او کاريزونو وربانډې يرغل پيل شو.

ټانکونو او زرهپوشونو د پناه ځای نه درلود. په وچ ډگر ودريدل. هرې خواته يې ډزې کولې، يوه زرهپوش اور واخيست شکور پرله پسې په مخابره کې خبرې کولې، له جيپ سره د پاتې کسانو مخابروي اړيکې وشليدلې د دويمې غونډۍ څخه چې له دې سيمې لرې پرته وه هم خواشينوونکي خبرونه رارسيدل. څوتنه يې تسليم شوي ول. په ټانك کې پاتې دريو کسو مقاومت کاوو. هغوی په مخابره کې پرله پسې چيغې وهلې.

ـ انقلاب توفان. انقلاب توفان.

خو شکور کلي ته د تللي قطعي له قوماندان سره په خبرو بوخت و:

ـ بلې بلې، توفان، انګار، اورم، ادامه، ادامه، توفان، انګار، انګار ادامه.

د مخابرې له بغس سره یوځای له هغې خوا ډډ غږ واوریدل شو.

ـ انګار توفان، انګار توفان توجه، انګار ټول کلی نیولی دی، دښمن د شمال په استقامت په تیښته دی.

د بلې مخابرې چیغې دوام درلود:

ـ انقلاب توفان، انقلاب توفان.

خو شکور ځواب ورنه کړ د انګار په ځواب کې یې وویل:

ـ ډیر ښه، توفان انګار، دښمن تعقیب کړئ، کوښښ وکړئ د اول شخص مړی یا ژوندی په لاس راوړئ.

ـ اطاعت کیږي.

شکور بلې مخابرې ته چې پرله پسې چیغې یې وهلې ځواب ورکړ:

ـ توفان انقلاب، توفان انقلاب، اورم توفان یم اورم، له هغې خوا د مخابرې له بغس سره یوځای سترې آواز واوریدل شو:

ـ انقلاب توفان، انقلاب توفان، دښمن موږ ته نژدې شوی دی کمک، کمک.

ـ توفان انقلاب مقاومت وکړئ کمک در رسیږي.

له هغې خوا آواز واوریدل شو:

عاجل کمک، انقلاب له ....

آواز یې د مخابرې له بغس سره ګډ شو.

شکور غږ پرې وکړ:

ـ توفان انقلاب، توفان انقلا ب ....

خوله هغې خوا آواز وانه وریدل شو.

قوماندان په مخابره کې د کتار د مخې په ټانګ غږ وکړ:

- انقلاب زمری انقلاب زمری.

- بلی اورم زمری انقلاب.

- زمری استقامت ختیځ.

- له دې سره کتار حرکت وکړ.

د ۶۶ ډوله ګاز موټر ټایرونه په ګولیو ولګیدل موټر یې ځای په ځای پریښود، دوی د مرمیو په باران کې په مخ ولاړل، شکور په مخابره کې پرله پسې چیغې وهلې.

- توفان انقلاب، توفان انقلاب.

اوس نو د جګړې له ځایه ښه لرې شوي ول، شکور شیبه په شیبه په مخابره کې چیغې وهلې.

- توفان انقلاب، توفان انقلاب.

د زرهپوش له کړکینچې څخه یو بل افسر پرې غږ وکړ:

- انقلاب اور اخیستی دی.

شکور لومړی ځل له زرهپوش نه سر را اوچت کړ ویې لیدل چې د غونډ پر سر له ټانګ نه لمبې جګیږي. په افسوس یې سر وښوراوو بیرته په زرهپوش ننووت.

د زرهپوش په سر ناست افسر خبر ورکړ چې د سرك ترڅنګ مړی پروت دی.

زرهپوش ودریده دري تنه ورکوز شول. مړی یې زرهپوش ته پورته کړ. شکورو پوښتل:

- جسد د چا دی؟

- تورن بصیر.

- اوه ددې بې چاره خو واده تیار و. پرون یې له ما رخصت واخیست.

ښايي د غونډۍ شاوخوا به نور مړي هم پراته ول. خو کتار په پټو سترګو تري تیر شو، دلته په دوی هم ډزونه ونه شول.

د نږدې کلي له کورونو څخه چې د مخه پکې د دواړو خواو جګړه وه لوګي پورته کیدل. شکور له وروستي حال نه ځان خبر کړ.

ـ توفان انګار، توفان انګار، موقعیت دې چیرته دی اطمینان!

د مخابرې بغس پورته شو:

ـ بلې انګار توفان، د انقلاب ځپلي کلي په شمال ۴ کیلومتري کې امنیت تامین دی.

ـ انګار انګار د محاربې وروستي نتایج څه دي! اطمینان.

ـ کلي په کامله توګه له ضد انقلاب نه تصفیه شو. د اشرارو تلفات ۱۳ تنه ووژل شول او ۲ تنه اسیر دي. زموږ د قطعې اته تنه شهیدان دي او ۱۱ تنه ټپیان دي، د دریو تنو حالت خراب دی او یو تن د کوما په حالت کې دی، په کلي اوربل دی.

نیم ساعت وروسته ددوی کتار له لیږل شوې قطعې سره یوځای شو، بې له ځنډه یې حرکت وکړ.

# دروېشتم څپرکی

ملوك د کلاخان په خبرو او وعدو باور نه شوای کولای خو بيا يې هم د شپې ددوی له کوټې د تيښتې هڅه ونه کړه.

يوځل بيا د کلاخان په بيګانيو خبرو راوګرځېده چې خپل ورور ته يې وويل:

ـ تاسې له دنيا ناخبره ياست، هسې خوشې تشې خلك ځوروئ، وضعه معلومه نه ده، ډېرو قطعاتو ته د تسليم امر ورکړ شوی دی.

دی سبا د خپلې خور کره ورسوه.

ملوك د کلاخان خبرې د شکور له وروستيو خبرو سره پرتله کړې له ځانه سره يې وويل:

ـ کلاخان د شکور غوندې نه دی، دی داسې نه کوي، رښتيا يې زړه را باندې خوږېږي، کلاخان بېګا داهم ويلي و، چې د ملوك د خور خاوند ګل مرجان په جګړه کې وژل شوی دی.

په کوټه کې يوڅه رڼا شوه، ملوك له ځايه راپورته شو، اودس يې وکړ. د سرای لويه دروازه تړلې وه. بيرته کوټې ته راغی کلاخان او ګلاخان هم راپاڅېدلي ول.

له چای څښلو وروسته کلاخان او ملوك په خوشحال مېنه کې د ملوك د خور د کور په نيت روان شول.

ملوك ۱۶ کاله وروسته د خپلې خور لیدو ته ورته. هغه وخت دی لا ډیر کوچنی و، د خپلې خور څیره ترې هیره شوې وه.

لیدو ته یې هم ډیر خوشحاله نه و. د ګناه احساس ورسره ملګری و، ځان ورته د خپلې خور د خاوند قاتل ښکاریده. تیره شپه یې چې د ګل مرجان د مرګ خبر اوریدلی و، په خپل ذهن کې د مړو او اسیرانو په منځ کې د هغه په لټه و، اوس چې د هغه د کور په لوري روان و، په فوځي دریشي کې جګ ښکلی ځوان یې ور په یادشو، چې د دوی ګروپ په وهلو ټکولو تر مرکزه رسولی و، سره له دې چې له هغه وروسته یې نه و لیدلی. خو یوه شپه چې بندیان له زندانه وتښتیدل، دوی ورباندې ډزونه وکړل، د کلا شاوخوا وینې ډیرې تویې شوې وې خو مړي هلته نه وپاتې، بیا وروسته چا خبر راوړ چې تښتیدلي کسان ټول جبار قوماندان په غره کې ووژل، دوو تنویې په لاره ډیره وینه ضایع کړې وه او مړه شوي ول. ملوك نه پوهیده چې ګل مرجان څه شو، خو ځان یې د هغه قاتل باله.

له ځانه سره یې وویل:

ـ خلك خپلو خویندو ته پړوني ورپه سرکوي، ما یې له سرنه پړونی واخیست، ماخپله خور کونډه کړه. ماخپل واړه خوریونه یتیمان کړل ما ....

ګلاخان یې په اوږه لاس کیښود:

ـ ښنګه یې وطنه. په کوم چرت کې تللی یې خور به دې څومره درته خوشحاله شي.

ملوك یوازې په «ام» سره ځواب ورکړ.

په زړه کې یې وویل:

ـ هو چا چې د چا د سر پړونی اخیستی وي خود به یې لیدو ته خوشحاله وي.

پرون يې لاس تړلي و، او په هليکوپټر کې د زندان په لوري روان و،
خونن په ټکسي موټر کې د خپلې خور د کور په لوري روان و. په يوه ورځ
کې دا ډير لوی بدلون و، چې د ملوك په ژوند کې راغلی و، پرون دا هم
معلومه نه وه، چې زندان ته به يې وړي او که پليګون ته. نن معلومه وه چې
د خورکور ته ځي.

خو ملوك په خپل ژوند کې په دومره لږ وخت کې په دغه لوی بدلون
خوښ نه معلوميده

خور ته به څه وايي، چې خاوند يې ددوی په سيمه کې ځنګه او د چا
له خوا ووژل شو.

ملوك ځان ته ډاډ ورکړ: نه نه ښايي هغه په کوم بل ځای کې وژل
شوی وي، ماهيخ ليدلی نه دی، که مې ليدلی وای حتمًا مې پيژاند،
حتمًا، ځنګه ځنګه به مې نه پيژاند، کوښښ يې وکړ د ماشومتوب په شپو
ورځو کې د هغه د ليدو يوه خاطره را په زړه کړي، په خپل ذهن يې فشار
راووست:

ـ هو هو هغه نری جګ سړی و، زموږ کور ته به په موټر سايکل راته،
ډول ډول ميوې به يې راوړې، کوم چې ما ليدلی دا هغه نه دی، هغه بل
څوك و، دا بل څوك. خپلو دغو سوچونو هم قناعت ورنکړ. له ځانه سره يې
وويل:

ـ ګل مرجان چې هرځای وژل شوی وي، زه پکې شريك يم، ماخپله
خور کونډه کړې ده، ماخپل خوريونه يتيمان کړي دي، او څه به ورته وايم
خور به مې....

ټکسي د يوې شين رنګې دروازې مخ ته ودريدله.

ګلاخان د ټکسي چلوونکي ته پيسې ورکولې ملوك ته يې وويل:

ـ دا ستا د خور کوردی.

یوه ماشوم ته چې د کور مخې ته یې په خاورو کې لوبې کولې ګوته ونیوله دا د ملګري ګل مرجان وروستی زوی دی.

ملوك په ماشوم ورټیټ شو ښکل یې کړ. خو مخ یې بلې خواته واړاوو.

د دروازې له لومړي زنګ سره یو ماشوم رااووت کلاخان زیری پرې وکړ:

.. ماما دې راغلی دی ورشه په مور دې زیری وکړه

او پخپله د کور مخې ته له یوې ونې سره ودریده.

د ملوك او خور روغبړ یې ښه ډیر وخت ونیو، دوی دواړو سره ژړل.

په کوټه کې د ملوك نظر تر هرڅه ړومبې په کونج کې د کوچني میز پرسر د بریتور ځوان په عکس ولګیده.

دا هغه کس و، چې ددوی ګروپ د جمعه ګل د کلا ترڅنګ نیولی و.

دا هغه دی چې د اوبوڅښلو ته چا پرې نه ښود.

دا هغه دی چې اکبر غوښتل ځای په ځای یې ووژني، اوه، چې له ما څخه یې ډوډی وغوښتله. ما ورنه کړه او منت مې هم پرې وکړ.

کاشکې هغه وخت مې پوښتلی وای، ښایې پیژندلی مې وای، مرسته مې ورسره کړې وای، را خلاص کړی مې وای، اوس به مې خور تورټیکرې نه و پرسر، اوس به مې خوریونه داسې سپیره مخونه نه و راته ناست. اوه خدایه. اوه خدایه.

# څلېرويشتم څپرکی

د خوراو خوريونو د څير وپه ليدو سره ملوك هم خپله پرېکړه بدله کړه، دی پوهېده چې خور يې ورته څومره ضرورت لري، په کابل کې پاتې شو، ده که څه هم پخپله سيمه کې د ګل مرجان د ليدلو او ددوی د ګروپ له خوا د هغه د نيولو کيسه له خپلې خور څخه پټه کړې وه، خو له ځانه سره په ياديدو به يې تل ځوريده، ځان يې د هغوی پوروړی باله.

د ګل مرجان مشر زوی هيواد يې چې ښوونځي ته تر تلو وروسته به يې په بازار کې کار کاوو، نور کار ته پرې نښود. خورځه يې ورېمه چې اوس پېغلوټې شوې وه له ښوونځي څخه راوګرځوله.

ملوك به سهار وختي د کوټه سنګي په چوك کې له نورو کارګرانو سره يوځای کيناست که به چا د کار لپاره بوتلل نو د ورځې ګټمل شوې پيسې به يې مانښام خپلې خورته راوړلې او که به کار ورته پيدا نه شو نو له منډيې څخه به يې سودا راوړه او تر مانښامه به يې په بازار کې خرڅه کړه.

په ښار کې حالت په څو ورځو کې بدل شو.

څو ورځې کيدې چې ملوك ښار ته نه ولاړ. هيواد. ميوند او بهير هم له ښوونځي څخه پاتې ول.

رادیوګانو یوازې د کابل خبرې کولې.

هیڅوك نه پوهیدل چې څه پیښیږي. ښاریانو د ویرې او هیلې ترمنځ ژوند تیراوو.

ملوك خوشحاله ښکاریده هرځل به یې چې خپل جای نماز ټولاوو وروستی دعا به یې ټولو واوریده.

ـ یا خدایه مجاهدین کامیاب کړې.

خو د کور نورو غړو په دې دعا کې ځانونه ورسره شریك نه بلل.

په هغه سهار ښاریان د ملا اذان پرځای ډزو له خوبه راویښ کړل.

خو دا ډزې ژر ودریدې. داسې معلومیدله چې د برې په ویاړ د خوشحالي ډزې وې.

ملوك خوشحاله و، نورو ته یې ډاډینه ورکوله:

ـ مه ډاریږئ، که خدای کول وروسته له دې به یو ډز هم وانهورئ.

ملوك په ښارکې نابلده و، داسې څوك نه و، چې دی د برې زیرې پرې وکړي او مبارکي ورکړي.

خو زړه یې طاقت ونه کړ هیواد ته یې مخ ورواړاوو.

ـ خوریې راځه چې ووزو، نن کابل وګورو چې څومره ښکلی شوی دی. نن کابل ته پرښتې راغلې پرښتې.

موټران لړ ول. دوی پلې د ښارپه لوري وخوځیدل. په ښار کې ډلې ډلې ځنې ور وسله وال کسان ګرځیدل.

چې هره ډله به تیریدله ملوك به هیواد ته مخ ور واړاوو

ـ وګوره څومره ښه ښکاریږي څومره ښه خلك دي مانه درته ویل؟

ملوك به دا خبرې په داسې انداز کې کولې لکه ټول چې ده راوستي وي.

هیواد په ساده ګی وویل:

ـ يره ماما زه خو يې له ټوپکو ډير ډاريږم، هسې نه چې ....

خوملوك به يې خبره پريكړه:

ـ ليوني كيږه مه نن خو اوله ورځ ده. كه خداى كول سبا ته به يو ټوپك هم ونه وينې.

ده لا دا خبرې نه وې تمامې كړې چې هيواد په وارخطايي وويل:

ـ وى وى هلته وګوره مړ يې كه، وى مړ يې كه.

څوتنو وسله والو د يوه كور مخې ته يو سړى د ټوپك ترقنداغ و نړ لاندې كړى و، دوى دواړه ورته ودريدل، ټوپكوال سړى ترستوني نيولى و.

ـ وايم كيلي راوړه، كه نه وژنم دې.

ـ درته ومې ويل، درته، درته ومې ويل ....

سلګيو واخيست، په سلګيو كې يې خبرې هم كولې، خو لكه چې ژړا اخيستى وي خبرې يې بندې بندې كيدې څوك نه وربانديې پوهيدل.

د شا لخوا يوه پلنګي پوش ټوپكوال په لغته وواهه:

ـ راوړه د ګراج كيلي راوړه ملحده، موږ پياده ګرځو تا ته موټر ولاړ دى.

سړى د يوې وهل شوې ونې په بيخ پړمخې ولويده، له خولې يې وينې جارې شوې، يوه بل چې توره كونډه ږيره يې لرله او تر اوسه غلى ولاړو، ورغى سړى يې ترلاس ونيو ورته ويې ويل:

ـ نذيره كيلي وركړه، دا داسې خلك نه دي چې همداسې دې پريږدي.

سړي چې د لاس په شا يې د خپلو شونډو وينې پاكولې په هماغه انداز وويل:

ـ ورته ومې ويل: چې په كور كې څوك نشته، خودوى يې نه مني.

یوه وسله وال دا بل ته مخ ورواړاوو:

د ګراج قلف یې مات کړه، دا د سپي زوی لارې ته نه راځي، یو بل چې کلاشینکوف یې له اوږې راښکته کاوو د ګاراج په لوري روان شو وېې ویل:

ـ روکی ښه وایې اوس به بل ګروپ راشي، تیاره ډوډۍ به مو له خولې وباسي. او له دې سره یې د کلاشینکوف میل د ګاراج په ځنځیر کې بند کړ، قلف یې مات کړ.

ملوك چې تر اوسه دا صحنه په پټه خوله څارله ورغی ټوپکوال یې تر لاس ونیو:

ـ خیریت خو به وي څه چور خو نه دی.

ـ ته څوك يې چې داسې هوکې کیږې؟

ـ زه هم ستا غوندې یو مجاهد یم، خو غل نه یم.

دده په لیدو نذیر هم جرأت پیدا کړ رامخته شو.

ـ دا غله دي، که غله نه وي نو پردې موټر ....

اغاشیرین په ولیو کې د کلاشینکوف په قونداغ وواهه:

ـ کینه کمونیسته، چې وژنو دې نه، ته لا شکر وباسه.

ملوك چې د اغاشیرین کلاشینکوف ونیو په قهر یې وویل:

ـ بس چې نور یې ونه وهې.

اغاشیرین څه ونه ویل. دا نورو ته یې وویل:

ـ موټر راوباسئ.

بیا یې ملوك ته ښکته پورته وکتل وېې ویل:

ـ دکوم ځای يې؟ چې پوه شو ددوی د سیمې نه دی نو د هغه په وهلو یې پیل وکړ. څو تنو کرولا موټر په ټیله ټیله له ګاراج څخه راویوست.

نذیرهك حیران ولاړ و.

خو ملوك له وسله وال سره لاس او گريوان و.

ټوپكوالو موټر تر سرك پورې ټيله كړ، يو ټوپكوال يو قات شوى كاغذ پرانيست د موټر د مخې په ښيښه يې سريش كړ.

هيواد تر تصوير لاندې كرښې ولوستلې:

دازادي د لارې اتل او د اسلامي ....

موټر په بيړه تر كړ ليچ تير شو.

# پنځه ويشتم څپرکی

قوماندان محمد هاشم کابل د راتلو په دويمه ورځ د شکور د موندلو په لټه کې شو، په لومړيو ورځو کې يې څوك پوښتني ته هم نه راتلل. کله چې رئيس مقرر شو او په راديو او تلويزيون کې يې خپل نوم واوريده نو هيله يې پيدا شوه چې اوس به په کابل کې اوسيدونکي مامورين چې له ده سره يې پخوا پيژندل دده پوښتني او مبارکي ته راشي. خو بيا هم څوك رانغلل لس پنځلس ورځې وروسته دوه کسه مامورين چې دده دسيمې وو، مبارکي ته راغلل.

په خبرو کې محمد هاشم ورڅخه د شکور پته وغوښته يوه ورته وويل:

ـ هو همدلته دې يوه ورځ مې د جادې په جومات کې د محمد الدين په فاتحه کې وليد.

ـ ښه ښه نو څنگه به يې پيدا کم؟

ـ اسانه ده.

هاشم په غررو سره وويل:

ـ يو وار به يې ووينو چې اوس په څه غورو کې دی؟ بيا يې دا بل ته مخ راواړاوو.

ـ اوس آ پخوانی بابولالې وايې که يې سد سرته ورغلی دی؟

ـ نه نه اوس غريب ډير غلی دی

ـ څنګه یو وار نه ورځو؟

ـ والله ورغلي خو به وو خو ....

محمد هاشم په خبرو کې ورولویده:

ـ ولې داسې ترولی (تلولی) شوې څه خورم خو یې نه، هسې یو وار یې وینم.

موسکی شو پسې زیاته یې کړه:

ـ هغه خو زما پخوانی یار دی.

دادمحمد فکر وکړ: له خبرو یې مالومیږي چې والله که یې وینه څمکې ته پریږدي، که دا ورسره مخامخ کړم د شکور د عمر بدي راله غاړې شوه.

دواړه میز پر سر یې چې دوړې او ګرزونه پرې پراته ول، ګډې وډې کرښې وایستلې سر یې راپورته کړ:

ـ خدای دې خیر کړي وبه یې وینې.

ـ ته عجب سړی یې زړه مې غواړي چې یو وار یې ووینم او ضرور کار هم ورسره لرم.

ـ اوس به خدای خبر هغه ....

خو محمد هاشم خبرې ته پرې نښود له ځایه راجګ شو.

ـ بس همدا یې وخت دی، یا الله ځئ چې ځو.

په موټر کې دواړه غلي ول، موټر په بیړه روان و. دا څو ورځې ښار ارام و. دادمحمد به چې له موټر څخه شاوخوا ورانو ودانیو ته وکتل سوړ اسویلی به یې له خولې ووت. بیا به یې هاشم ته چې د موټر د مخې په سیټ کې ناست و، وکتل سر به یې وښوراوو. کله کله به یې ډربور ته لارښودله.

موټر ډیر ژر مکرویانو ته ورسیده او د یوه پنځه پوړیز بلاك مخې ته

ودریده، وسله وال کسان ژر ژر له موټر څخه راکوزشول او شاو خوا د تیارسۍ په حالت کې ودریدل.

دادمحمد پورته د بلاك کړکیو ته وکتل په څلورم پوړ کې د شکور کور و، په برنډه کې یوکوچنی هلك چې دوی یې ولیدل په وارخطایي د کور په خوامنډه واخیسته.

دادمحمد ترمخ هاشم او یوبل وسله وال پسې پورته وختل، دروازه یې ټکوله او ورپسې یې دروازه ځانته خلاصه کړه.

ـ سلام

ـ والیکم السلام بچیه پلاردې کوردی.

ـ پلارمې، پلار مې، نه نه، پلارمې نشته.

دادمحمد یې په سرلاس راتیرکړ:

ـ زویه مه ډاریږه ورشه ورته ووایه مدیر دادمحمد راغلی دی.

هلك دروازه نیمکښه پریښودله ولاړ.

شه ځنډ وروسته یوسپین کالی سړی چې خړ پکول یې په سرو، لوڅې پښې راووت، په څیره کې یې تشویش او وارخطایي له ورایه بریښیده.

تر نورو دادمحمد ورته نږدې و، خو اول یې په محمد هاشم غیږ وګرځوله بیایې له دادمحمد سره روغبړ وکړ، دابل وسله وال وردمخه شو لاس یې ورته ونیو خو دده ورته پام نه شو، ژرژر یې خبرې کولې.

ـ راځئ راځئ هرکله راشئ، راځئ کورته.

محمد هاشم په موسکا ورته وویل:

ـ لکه چې ودې نه پیژندلو؟

ـ څه ووایم ـ بیایې په وسله وال غیږ راوګرځوله.

ـ وطنه ستړی مشې. تاته خو هیڅ متوجه نه وم، ډیر معذرت غواړم.

د ننوتو په وخت کې دادمحمد ورته وویل:

ـ دا امر صاحب محمد هاشم دی.

ـ ښه ښه، ډېر ښه، دا خو ډېر د افتخار ځای دی.

په کوټه کې غالۍ ویړې وې. او شاوخوا له دیوالونو څخه لږ لرې کوچونه ایښودل شوي ول، د کوټې په یوه کونج کې له فارمیکا څخه په جوړه شوې الماری کې ویدیو او تلویزیون ایښي ول، په بله خانه کې یې دوه کسته اوږد ټایپ ایښودل شوی و. د دروازې شاوخوا یوه ښکلې الماري جوړه شوې وه په څو خانوکې یې کتابونه ځای په ځای شوي ول. په پورتنیو خانو کې څو عکسونه ایښودل شوي ول.

هاشم د کیناستلو په وخت کې شکور ته وویل:

ـ ناځوانه یو وار مې پوښتنې ته هم رانغلې.

ـ یره قوماندان صاحب په شرافت که خبر وم، چې تاسې تشریف راوړی دی.

ـ خوشې بانې مه کوه ښه خبر وې.

ـ په وجدان که مې اروا هم شکه وه. که نه زه په دې جهت کې ډېر فعال یم.

ـ راځه راځه کېنه، ډېر وجدان وجدان مه کوه.

شکور له ځانه سره وویل:

ـ داغم ګوره څه بد مې وکړل چې ور ووتم تر سبا به مې د ځان چاره کړې وه.

# شپږویشتم څپرکی

غونډه د ریاست په تر ټولو لوی دفتر کې جوړه شوې وه.

رئیس، سموت او څلور وسله وال د ریاست د پخواني مرستیال او د وزارت له معین سره یوځای راغلل.

نږدې و، چې د خدماتو مدیر چك چك وکړي لاسونه یې هم سره جوړ کړل خو ژر متوجه شو، ژبه یې راویسته سر یې ټیټ واچاوو، د ځنګ ملګري یې مرسته وکړه د تکبیر نارې یې پورته کړې ټولو وروسته وړاندې ((الله اکبر)) وویل چا یوځل چا درې واره او ځینو هم څلور پنځه ځله تکرار کړه.

رئیس او ورسره کسان د دفتر په پورتنۍ برخه کې په معلومو څوکیو کیناستل یوه وسله وال کس چې د عصمت الله تر څنګ ناست و. هغه ته په غوږ کې څه وویل دواړو وخندل او د نورو ناستو کسانو خواته یې وکتل. هرڅوك پوهېدل چې سره وایي:

ـ دوی ته ګوره. اوس مسلمانان شول.

ټول پخپلو ځایونو کیناستل ځینې په یوه څوکۍ دوه دوه تنه او ځینې د کوچونو په څنګلیو کیناستل خو څو کسه د دروازې خواته ولاړ پاتې شول.

د قرآن شریف څو مبارك آیتونه ولوستل شول

قوماندان عبدالغفار چې د تنظیمونو ترمنځ د چوکیو په ویش کې اوس د وزارت معین ټاکل شوی و څو لنډې خبرې وکړې او نوی رئیس یې مامورینو ته وروپېژانده: محمدهاشم زموږ مجاهد ورور چې د جهاد په دوران کې یو ښه قوماندان و، زړورتیا یې ټولو ته معلومه ده، قوماندان صاب اصلاً نظامي سړی دی خو د تنظیم پریکړه داوه چې دې دلته کاروکي.

د هاشم په مټ بې لاس کینبود موسکی شو:

ـ زه ده ته ددې نوې وظیفې مبارکي وایم او بری یې غواړم.

معین غفار خپلې خبرې پای ته ورسولې، بې له دې چې کیني هاشم ته یې څه وویل چې نورو نه اوریدل. هاشم او ترڅنګ نور کسان یې له ځایونو راپورته شول، معین څادر په اوږو سم کړ او ووت. نوی رئیس او ورسره کسان له دروازې بیرته راوګرځیدل د ریاست پخواني مرستیال د ریاست کارکوونکی یویو وروپیژندل هر یو د خپل نوم سره له ځایه پورته کیدل.

رئیس خپلې څنګلې په میز تکیه کړې غاړې یې تازه کړې هڅه یې کوله چې په بم آواز وغږیږي.

رئیس په پاکستان کې د تنظیم په دفتر کې له اداري کاره رانیولې بیا د خپلو جګړو په باب ټولې کیسې یو په بل پسې وکړې، او بیا یې ددغې نوې ټاکنې په باب وویل:

ـ دغه کارونه چې نن ماته سپارل شوي دي زما چندان نه خوښیږي خو اندېوالانو راته لازم وبلل. اوس چې دا وظیفه راسپارل شوې نو له تاسې ټولو مې هیله داده چې پخپلو ....

یوې سختې چاودنې یې آواز ورک کړ، ټول وارخطا شول د دروازې خواته د یوې میرمنې له خولې چیغه ووتله.

خو رئيس وپوهول چې هيڅ خبره هم نشته، يو وسله وال د کړکۍ خواته ولاړ، له کړکۍ نه يې يوې بلې خواته وکتل.

رئيس بيا خبرې پيل کړې:

ـ دلته زما پاك مسلمانان پكار دي، چا چې له کمونيس رژيم سره کار کړی دی خدای پاك دې ترې ورتېر شي زه پوهېږم چې ټول يې ملحدين نه دي، خو ....

يوې بلې چاودنې ودانۍ ولړزوله، تر مخکينۍ چاودنې دا سخته چاودنه وه داسې څرګنديده چې رئيس يې هم ويرولی وي ژر يې سر ټيټ کړ او پخپله پوزه يې لاس ونيو نور ټول له ځايونو پاڅيدل، يو دوه تنه خو له چوکيو لاندې په ځمکه ولويدل.

يوه وسله وال چې د کړکۍ ترڅنګ ولاړ و وويل:

ـ راکټ دی له کوزې خوا راوويشتل شو.

د ښار په لويديځه خواکې د معين عبدالغفار د کسانو پوستې او پاټکونه ول.

رئيس چې په ځيره کې يې ويره اووسواس ښکاريده د څنګ ملګري ته څه وويل، هغه په بيړه له دفتره ووت.

رئيس بيا خبرې پيل کړې:

ـ څو شيان چې زه ډير پسې خپه کيږم، يو يې د حجاب خبره ده، چې نور يې په دې شکل ونه وينم.

له دې سره يې ميرمنو ته چې ټولې په يوه کتار کې دروازې ته نږدې ناستې وې وکتل.

دومره په ځير ځير يې ورته کتل لکه چې دمخه يې نه وې ليدلې او اوس يې ورته پام شوی وي.

سيما چې د ياسمين ترڅنګ ناسته وه د صادرې واردې د کتاب په

دفتنه ولیکل ((تاته ګوري.))

یاسمین نرۍ موسکا وکړه او سترګې یې ښکته واچولې سیما ښایي له یاسمین سره ټوکې کړې وي، خوهاشم چې دمخه یې خپل مخاطبین یوازې، ناست نارینه بلل او د ښځو خواته یې نه کتل، اوس دومره د ښځو کتار ته متوجه و، چې په دفترکې نور ناست کسان یې هیر کړي ول.

لکه چې په ده هم د یاسمین شوخو سترګو اثر کړی وي په خبرو خبرو کې یې هڅه کوله چې هغې ته نیغ وګوري.

دا کاته څو ځله رد او بدل هم شول.

خو له دوهمې چاودنې وروسته ټول د خبرو د ژر ختمیدو په هیله ول، ټولو د بل توغندي غږ ته غوږونه څك نیولي ول.

هرڅوك پوهیدل چې یوه هم د رئیس خبرو ته غوږ نه دی نیولی، جسمًا دلته او روحًا بل ځای دي، ددوی له څیرو هم داسې بریښیده چې د نورو خبرو اوریدو حوصله نه لري او د یوه پناه ځای په غم کې دي.

خو هاشم لکه چې دوی ته ښودله چې نه ویریږي خبرې یې یو په بل پسې اوږدولې.

د هاشم له خبرو وروسته فقیرمحمد هم لنډې خبرې وکړې.

د هغه لا خبرې نه وې خلاصې چې ټول له ځایونو پاڅیدل ځکه له لرې د توغندیو آواز اوریدل کیده یو وسله وال له کړکۍ وکتل په بې تفاوتې سره یې وویل:

- د تیلو سرای اور اخیستی دی.

له دروازې د باندې دیبا، د یاسمین جالۍ پوړونی کش کړ په غوصه یې وویل:

- یوخودې خدای ستا دا جالۍ ورکه کړي اوس هم د تاشکن ((تاشکند)) په چرت کې یې.

ـ ولې ولې؟
ـ رئیس ته دې نه کاته، څومره بد بد یې درته کتل؟
یاسمین په معنی لرونکې موسکا وویل.
ـ زه د هرچا کتل تللای (تراوز) شم.
- لیونۍ هغه نور کتل و، اوس کتل، ویل، اوریدل او هرڅه بدل شوي دي.
یاسمین یوازې وویل:
ـ غم یې مه کوه.
یاسمین د دیرشو کالو په شاوخوا کې وه، دا که څه هم پیغله نه وه خو ناسته ولاړه، تګ، ټوکو، شوخې او کړو وړو یې هغه د نویو پیغلو په کتار کې دروله.
ددې دفتربه تل د اداري له ښځو ډك و، د نورو دفترونو نجونو هم خپلې پیالې ددې دفتر ته وړې وې او د چای څښلو لپاره د یاسمین دفتر ته تلې، هر وخت به یې هلته تود باندار جوړ کړی و، ټوکې او مسخرې به وې.
دوی به د یاسمین له خواږه مجلس نه خوند اخیست.
که څه هم د پیغلتوب تر عمر ور اوښتې وه، خو هیڅ وخت یې په ځان نه راوړه چې عمر دې یې تر نورو زیات وي.
د سوانحو په دفتر کې ده یې د زیږیدو کال ۱۳۴۱ ښودل شوی و، خو دې نه مانه، ویل به یې چې هغه وخت یې د ګونډ د غړیتوب د لاسته راوړلو لپاره په لوی لاس خپل عمر زیات ښودلی و.
د اداري پخواني کارکونکي پوهیدل چې یاسمین د خپل عمر په باب د نورو زیاترو ښځو په څیر درواغ وایي او عمریې ښایي تردې هم زیات وي.
خو هغه چا چې له دې سره یې نوې پیژندګلوي کیدله ددې د عمر په باره کې دا ډول تصورنه کاوو.

ځکه دا نه یوازې زړه شوې نه وه بلکې د پخوا په څیر ښکلې او جذابه وه.

په سینګار به یې ډیر وخت لګاوو. سره له دې چې تل به یې پوډر وهلی و، خو ډیرو دا فکر نه کاوو چې دا ښکلا دې د پوډرو برکت وي. د هغې په سره سپین مخ د پوډرو موجودیت هیڅ نشوای تشخیص کولای.

ځرځوغښو سترګو، نریو ورځو، کوچنۍ ټنډې او اوږدو سوربخنو زلفو او لنډې زنې یې د پوزې د سر د پیړوالي بدرنګي په ښکلا بدله کړې وه.

سموت به ددې په باب ویل:

ـ که دا پوزه دبل چا وای، والله که مې ورکتلي هم وای، خودا پښو.

دا په ظاهر تل خوشحاله، شوخه او خندانه وه، په شونډو به یې تل نازکه موسکا خوره وه، چې هم پکې صمیمت پروت و او هم یو ډول جنسي جاذبه، چې هر نوي لیدونکي به ځان ورته نږدې احساساوو، داسې لکه چې له ډیر پخوا ورسره پیژني خو که سړی به یې څیرې ته ډیر ځیر شو، څو شیبې به ورسره پټه خوله مخامخ کیناست، دا ورته معلومیدای شوای، چې له دغې خوشحاله او شوخې څیرې څخه نامحسوس ویرونه هم اوري، داسې چې زړه به دې پرې وسوځیده، او د زړه له اخلاصه به دې غوښتل چې په غم یې ورشریك شې زړه یې را وسپړې له غمونو او دردونو یې ځان خبر کړې او د زړه له اخلاصه ورسره مرسته وکړې.

په داسې حالت کې به د هغې ښکلو مړو سترګو، راوتلیو سرو اننګو او د څیرې هرې برخې درته ژړل.

تا به ویل چې اوس به راته وایې:

ـ ولې داسې راته ګورې، ته هم غواړې له دغو اننګو خوند واخلې. ته هم غواړې په دغو سترګو کې لاهو شې او پکې د مینې جهانونه ووینې؟ خبر نه یې چې دا د ویرونو کورونه دي؟

تا به ویل چې ټول لیدلي او نالیدلي غمونه به په همدغو سترګو کې وي، د ټولو غمونو او بدمرغیو هنداره به همدغه اننګي وي.

خو د هغې یوې نرۍ موسکا به دې دا ټول خیالونه او تصورات خام وخیږول

هاشم هم له هغو کسانو څخه و چې ددې د څیرې دا خوا یې نه لیدله یوازې یې د هغې خندا او د سترګو ښکلا لیدله.

یاسمین د ښاري کورنۍ څخه وه، پلار یې له پخوانه د کابل په ښار کې اوسیده، د ملي بس په تصدی کې ډریورو. عظیم له خپلې کورنۍ سره چې له یوې میرمنې دوو زامنو او یوې لور څخه جوړه شوې وه، د اسمایي غره په ډډه کې په یوه کرایي کورکې اوسیده.

تنخوایې بده نه وه، کولای یې شول چې ددوی ورځنۍ اړتیاوې پوره کړي، خو عظیم یوه میاشت هم پوره تر کوره پورې نه رارسوله، هغه به زیات وخت له خپلو انډیوالانو سره چې زیاتره یې ډریوران اوکلینران ول تیراوو، خپلې دندې ته هم چندان پابند نه و، زیاتره وخت به له خپلو انډیوالانو سره په میلو او ساعت تیریو بوخت و، ګټل شوې پیسې به یې په همدغو بانډارونو او له کابل څخه دباندې په چکرونو لګولې، همدا وجه وه، چې عظیم د غره په یوه ختیین واړه کورکې چې دوه کوټې یې لرلې او کرایه یې تر نورو ارزانه وه د خپل عمر زیاته برخه تیره کړې وه.

د یاسمین مور به په کور کې جاکټونه اوبدل، خیاطي یې کوله او د کور زیات خرڅ به همدې برابراوو.

خود یاسمین بدمرغۍ هغه وخت پیل شوه، چې پلار یې بل واده وکړ، واده چیرې و، بس یو ماښام عظیم له یوې بلې ښځې سره کورته راغې.

د یاسمین مور ته یې وویل چې وروسته له دې ته ددغې مزدوره یې او دا ستا باداره ده، هرڅه چې دی ویل منې به یې.

ددوی د کورنۍ تریخ ژوند د نوې میرمنې په راتلو سره لاپسې تریخ شو.

هره ورځ به یې په کور کې نوې غم جوړ و، ورځ به د دواړو ښځو په جګړه تیره شوه. ماښام به چې عظیم کور ته راغی بې له دې چې ګرم او ناګرم معلوم کړي، د خپلې پخوانۍ میرمنې په وهلو به یې پیل وکړ. عظیم نه یوازې خپله پخوانۍ میرمن بده ایسوله بلکې خپلې لور او دوو زامنو ته یې هم د اولاد په سترګه نه کتل.

خپله یوازینۍ لور یاسمین یې چې لا دښوونځی په څلورم ټولګي کې وه خپل یوه ملګري غلام رسول ډریور ته په نام کړه، ځینو به ویل چې عظیم خپله لور په قمار کې بایللې ده.

د یاسمین له کوژدې دوه اونۍ وروسته عظیم مزارشریف ته ولاړ، دا د هغه وروستې سفر و چې بیا را ونه ګرځیده او تر ننه یې پته نشته، نوې میرمن یې یوه اونۍ وروسته د خپل پلارکور ته ولاړه، د عظیم له ورکیدو دوه میاشتې وروسته د یاسمین کورنۍ بې له دې چې څوک پرې خبر شي له پخواني کور څخه راکډه شول.

د داسې بیړنۍ کډې کولو یو علت یې هم غلام رسول ډریور و، چې هره ورځ به راته او بې له دې چې د عظیم راتلو ته صبر وکړي د واده غوښتنه یې کوله.

د یاسمین مور که هرڅومره ورته وویل چې لور یې وړه ده د واده نه ده خو غلام رسول نه منله. په هغه ورځ یې ورته وویل: که د جمعې تر ورځې پورې زما واده تیار نه شي. نو زه مې خپله ښځه په زور کور ته بیایم.

ځکه خو د یاسمین مور بیړه وکړه، پرته له دې چې په لاهورۍ دروازه کې د خپل تره زوی کره احوال ورکړي راغلل، امام الدین ورسره مرسته وکړه په کور کې یې یوه کوټه ورکړه مشر زوی یې په چنداول کې له

مستري سره شاګرد کړ. کشر زوی آصف او ياسمين يې بيرته په نږدې ښوونځيو کې شامل کړل.

وروسته وروسته لطيف د يوبل سره په شريکه په چنداول کې د موټرو د ترميمولو ورکشاپ جوړ کړ.

خو د آصف په درسونو کې چندان خونده نه وه. بس يوازې به کاميابيده.

مور به يې ويل کاشکې د آصف په ځای مې ياسمين زوی وای ياسمين به په خپل ټولګي کې اول نمره او دويم نمره وه

د نوي دولت پرله پسې فرمانونو د دوی د ژوند په سمون چندان اغيزه نه لرله، يوازې اووم نمبر فرمان ته دوی خوشحاله و. ځکه چې له هغه وروسته يې بيا غلام رسول ونه ليد.

آصف په سازمان کې شامل شو. هلته يې هم چندان پرمختګ ونه کړ، څه وخت وروسته له سازمان څخه هم وه ايستل شو. که څه هم له دولسم څخه فارغ شوی و خو کار يې نه و پيدا کړی، يوځل د اوبو او برښنا په وزارت کې ماموريت ورته پيدا شو په دوهمه مياشت يې نيمروز ته تبديل کړ نيمروز ته نه ولاړ بيرته بيکاره شو

زيات وخت به يې د کوڅې له هلکانو سره په سينماګانو او پارکونو کې تيراوو. ورو ورو په چرسو روږدی شو ورځ به يې ټوله په تيمورشاهي پارك کې تيروله. له کوره هم خوابدی و. د کور ټول لګښت د لطيف په اوږو بارو. آصف به چې هر کار ته ملا وتړله هغه کار به سرته نه رسيده. نور يې له ژونده زړه تورشوی و.

خود د ژمي په يوه سړه ورځ د هغه د بخت دروازه هم پرانيستل شوه.

د ژمي دغه ورځ که ټول وطن ته د بدمرغۍ ورځ وه او څنګه يې چې د نورو آرام ژوند په دوزخ بدل کړ د آصف سرګردانه ژوند يې هم بدل کړ.

د ښارپه واټونو کې بهرنيان ګرځيدل. په هغه يخنۍ کې چې نورو به

ځانونه په څادرونو کې پوښلي ول، روسان به د ښار په واټونوکې په دوبنيو دريشيوکې ګرځيدل.

دوی خلکوته بد بد کتل او خلکودوی ته، چې چا به ځيرځير ورته وکتل، نو د کلاشينکوف ميل به يې د هغوی په خوا ونيو خلك د هغوی په خبرو نه پوهيدل، يوازې يوه کليمه به يې ترې اوريدله «دشمن، دشمن، دشمن».

د دښمنيو په دغه يخ کنګل کې د آصف د بدمرغيو کنګلونه ويلې شول، ده هم ترښې څنګل سپينه پټه وتړله، او له نورو سره يوځای د پښتونستان واټ د سرك په غاړه و دريده او په لاره ځينې تيريدونکی لارويان به يې تلاشي کول، نه خو ده ورسره ولاړ کسان پيژندل او نه هم نورو دی پيژانده، يو تن چې ترڅنګل يې پټه تړلې وه او بې قنداغه روسي‌ي کلاشينکوف يې په غاړه کې اچولی و ده ته رانږدې شو.

ـ ملګريه ته وسله نه لرې؟

آصف نه پوهيده څه ورته ووايي بې له دې چې خبره وسنجوي وويل:

ـ وسله هو وسله يو کلاشينکوف مې درلود بل ملګري ته مې ورکړ.

ـ چې داسې ده نو راديو ته ولاړ شه له ملګری اتش کفه څخه کلاشينکوف ترلاسه کړه.

د راديو تلويزيون په انګړ کې نور هم راټول شوي ول

داسې معلوميده لکه چې د اختر له لمانځه وروسته خلك يو بل ته اختر مبارکي وايي، يوبل يې په غيږو کې نيول. آصف نه پوهيده چاته ورغاړه وزي، هك پك ولاړ و. د نورو له خبرو پوه شو چې راغلي کسان يا زندانيان ول، يا د حکومت له ويرې پټ ول

ده هم خپل نوم د زندانيانو په لست کې وليکه يو روسي نوی کلاشينکوف يې واخيست او د شيرعلی خان واټ د امنيت مسؤوليت ورته وسپارل شو.

آصف څو ورځې وروسته په همدې سیمه کې د امنیت د رئیس په توګه وګومارل شو. خپله خور یاسمین یې هم د سابقه لرونکو مخفي ګوندي غړو په لست کې ونیوله، خو مشر ورور مستري لطیف یې دغه باد راوړي ګوندي غړیتوب ونه مانه، چې بیا وروسته د کب د دریمې نیټې د روسانو په ضد پاڅون کې ووژل شو.

یاسمین د زده کړو لپاره تاشکند ته واستول شوه د تاشکند په هوایي ډګر کې له یو بل افغان ځوان خلیل سره مخامخ شوه.

په لومړۍ لیدنه کې یې یو پربل زړونه بایلودل. د هوایي ډګر په کانتین کې یې چای وڅښه په لږ وخت کې دومره سره نږدې شول، چې یو له بله جلا کیدلو ورته د مرګ معنی لرله.

خو چاره نه وه یاسمین باید په تاشکند کې د شپږو میاشتو لپاره پاتې شوی وای او خلیل د یوکال لپاره په کیف کې د فوځي زده کړو لپاره استول شوی و.

خلیل په مسکو کې د خپل یو دوست پته او د تیلفون نمبر ورکړل چې بیا وروسته یې له هماغې لارې د یوبل بل پتې پیدا کړې او بیا د دواړو لویه بوختیا یوبل ته د لیکونو او عکسونو استول و. یاسمین له زده کړو وروسته کابل ته راغله او د خلیل د راتلو شیبې یې شمارلې.

په دې نورې شپږ میاشتې شپږ کلونه شول.

یاسمین یو ازې د کابل هوایي ډګر ته ،د خلیل هرکلي ته ورغله.

خلیل نور خپلوان نه لرل چې هرکلي ته یې ورشي.

داسې څرګندیده چې خلیل له شوروي څخه خپل ټول کور راوړی وي ډول ډول الماریځ د خوب تخت کوچونه چاینکې او فرشونه د خلیل د کور سامان و، چې د یاسمین په مرسته یې په زړو مکرویانو کې پخپل کور کې ځای پرځای کړل.

خلیل په مرکزي قول اردو کې له یوې میاشتې کار وروسته رخصتي واخیستله او له یاسمین سره یې چې اوس د ناحیې د ښځو د سازمان رئیسه وه واده وکړ.

ددوی دواړو د نیکمرغي او خوشحالي شپې ورځې رارسیدلې وې، دومره سره ګران ول، چې د ورځې رسمي وخت به یې هم یو له بله لرې نه شو ای تیرولای.

د ورځې په اوږدو کې یود بل دفترونو ته هم ورتلل او هڅه به یې کوله چې وختی کورته راشي.

خو لکه څنګه چې یې پېژندګلوي او واده زرشوی وه هماغسې ژر سره جلاشول. څلور میاشتې وروسته خلیل خوست ته واستول شو او شل ورځې وروسته یې د مرګ خبر راورسیده.

د خلیل مرګ د یاسمین زړه مات کړ، د زړه له کوره یې د ځواني ولولو کډه وکړه.

نور خپلې دندې ته نه ولاړه، او د ناروغۍ په بستر پریوتله. جنرال آصف واده کړی و، او خپله مور یې له کوره شړلې وه، مور یې له خپلې یوازینۍ لور یاسمین سره اوسیدله. د لور له زیږیدو وروسته یاسمین دولتي دندې ته ستنه شوه او د پوهنې په وزارت کې وټاکل شوه.

ظاهرًا داسې څرګندیده چې یاسمین خپل پخوانی د خوښۍ ژوند بیا پیل کړ دي. ښکلې جامې به یې اغوستې او سینګار خو یې نورو نجونو او میرمنو ته د الهام منبع وه.

خو په زړه کې یې د خلیل مینه ساتلې وه، د هغه په شوروي کې اخیستل شوي عکس یې د هغې د نورو مینانو د پرله پسې غوښتنو سره سره د میز له سره راکوز نه کړ او د نارینه ساعت به یې چې د خلیل د لاس ښېبه وه تل په لاس و.

# اوه ویشتم څپرکی

د جمعې په ورځ د بلاک مخې ته لاره سرو او سپینو ډاټسنو بنده کړې وه. د ډاټسنو په باډیو کې ګیډۍ ګیډۍ د اوږې د سر راکټونه ولاړ ول.

څو کسه ټوپکوال چې پلنګې دریشي یې اغوستې وې د موټرونو شاوخوا ګرځیدل، د بلاک مخې ته ماشومانو د نور کله په څیر لوبې نه کولې. د موټرونو په راتلو سره څوک خپلو کورونو ته ولاړل او نورو هم د بازار لاره ونیوله، د بلاک په برنډو کې هم څوک نه تر سترګو کیدل. خلکو د تلاشي له ویرې پخپلو کورونو کې موجود کتابونه او نور سندونه د باندې غورځولي ول. او ځینو خو لا د خپلو ماشومانو او میرمنو په مرسته د بلاک تکاوي کې ځای پرځای کړي ول.

د بلاک خواته تیریدونکو کسانو به د موټرو په لیدو بلې خواته لاره چپه کړه. یوله بله یې د وسله والو کسانو په اړه پوښتنې کولې. خو هیچا سم ځواب نه درلود

وروسته څرګنده شوه چې راغلي ټوپکوال د شکور میلمانه دي. شکور له برنډې څخه پخپل زوی چې له ټوپکوالو سره یې خبرې کولې غږ کړ:

_ اباسینه میلمانه راوله، تاسې په موټرو پام کوئ چې څوک ورنږدې نه شي.

د شکور د ځیرې په ځیر داخل دده کوټه هم بدله شوې وه. کوچونه او میزونه بلې کوټې ته وړل شوي ول، او په کوټه کې سرې توشکې چې سپین کرښې کرښې پوښونه پرې غوړیدلي ول، هوارې وې. دتلویزیون په الماری هم سپینه پرده غوړیدلې وه. دقیبلې خواته په دور یو جای نماز چې د مکې معظمې انځو پرې کښل شوی و راځړیدلی و. د الماری پر سر پخوانی عکسونه لرې کړای شوي ول، او پرځای یې په دیواله یو لوی تصویر راځړیدلی و. په تصویر کې یوه میرمن په رهیل کې د پرانستي قرآن کریم په قرأت بوخته وه. بل خنګ ته یې سپین ږیری سړی په یوه دلدل آس چې وزرونه یې پرانستي ول، سپور و په سر یې لیکلي و: «یاغوث الاعظم دستګیر مدد».

ورسره د شکور ځیره هم بدله وه. د ق هاشم سره دلومړۍ لیدنې په ځیریې پکول په سر و خو داسې معلومیدل چې له هماغې ورځې راهیسې یې بیا ږیره نه وه خریلې. تورې او سپینې ږیرې یې ځیره هم بدله کړې وه. داسې چې ډیرو دوستانو یې په لومړي نظر نه پیژاند ویلای شو چې ږیره یې نیمه توره او نیمه سپینه وه.

په پکتیا کې د تور او سپین ګوند په باب یو روایت داهم راغلی دی. وایي چې د پکتیا خلکو د استقلال په جګړو کې انګریزان ډیر وارخطا کړي ول. نو ددوی په منځ کې د نفاق اچولو لپاره انګریزانو د سیمې خلکوته کیشکره ښکاره کړه او ورته یې وویل چې که هرڅوك هوښیار او پوه و، نو وبه وایي چې په دې مرغه کې تورې برخې زیاتې دي که سپینې؟

ځینو وویل تور رنګ پکې زیات دی. خو نورو بیا وویل چې نه د کیشکرې په برخو کې سپین رنګ زیات دی.

وایي چې له هغه وروسته د کیشکرې د تور رنګ پلویان تور ګوندیان شول او دا نور یې سپین ګوندیان

د شکور د ږیرې په باره کې هم د میلمستون په کونج کې د ناستو میلمنو پټه مشاجره روانه وه.

یو ټوپکوال چې ټوپك یې تر کیڼ زنګون لاندې ایښی و. دا بل ته ورپه غوږ شو:

ـ شکور له ږیرې سره ډیر ښه ښکاریږي.

هغه ورته وویل:

ـ تور خر نه سپنیږي.

شکور چې له هاشم سره په خبرو بوخت و. ددوی خبرو ته یې پام شو. ورته یې وکتل.

سموت چې د ناستو کسانو خبرې یې اوریدلې وې شکورته وویل:

ـ والله دا ږیره خو ډیره ښه درسره ښکاري خو مطلب یو تاوان دې پکې کړی دی.

یوبل ټوپکوال له کونج نه راغږ کړ:

ـ څه تاوان یې کړی دی؟

سموت په معنی لرونکې لهجه وویل:

ـ مطلب دده اصلي څیره یې ښودلې ده.

د شکور رنګ ژیړ شو په وارخطایي یې پوښتنه وکړه:

ـ څه څه ځنګه اصلي څیره؟

سموت موسك شو ویې ویل:

ـ تراوسه ځوان مالومیدې مطلب پوه شوې که پوه نه شوې اوس مالومه سوه چې سپین ږیری یې.

د ځنګ سړي ته یې مخ ورواړاوو:

ـ که ځنګه اودولا داسې نه ده.

ـ نه نه اوس یې هم په ږیره کې تور وېښتان زیات دي

سموت یوځل بیا شکور ته ځیرشو ویې ویل:

ـ نه نه سپین ږیری شوی دی مطلب سپین ویښتان زیات دي.

یو بل د عبدالله خبره تائید کړه:

ـ یه یه نام دخدای ځوان دی ټول ویښتان یې توردي.

یوبل د دروازې له خوا غږ کړ

ـ شرط تړې؟

ـ نه سپین زیات دي.

ـ تور زیات دي.

ـ یه یه ...

خو د دوی دا مشاجره د چلمچې او بدنۍ شرنګا وشکوله لوی سور رنګی دسترخوان هوار شو. ډول ډول خواړه پې کیښودل شول، چې زیاتره یې میلمنو نه پیژندل نه پوهیدل چې اول په کومو خوړو پیل وکړي، یو بل ته یې کتل. شکور لاپه دهلیز کې و او د میوو لوښي یې راوړل، میلمنو په لویولویو ګردو مجموکې د وریجو په خوړلو پیل وکړ، خو عبدالشکور ورسره مرسته وکړه په کوچنیو لوښو کې یې وریجې وویشلې او د هریوه مخ ته یې کیښودې.



لکه چې دمخه ټاکل شوې وي د ډوډۍ له خوړلو وروسته ټول پاڅیدل.

شکور او قوماندان هاشم په یوه موټرکې کیناستل، موټر د قرغې د بند په لوري حرکت وکړ خو د قوماندان نور ملګري په نورو دوو موټرونو کې ولاړل او له دوی سره یې ملګرتیا ونه کړه.

د ماسپښین لمونځ یې د لارې په یوه جومات کې اداء کړ دوی د

قرغې د بند سیل په موټرکې وکړ، موټر یې له نورو لرې د بند د اوبو ترخنګ ودراوو، په موټر کې ورسره ملګري سپوږمۍ رستوران ته ولاړل او هاشم او شکور دواړه د موټر ترخنګ په شنه چمن کې وګرځیدل.

لومړی یې رسمي او تشریفاتي خبرې کولې، زیاتره خبرې یې د بند د ښکلا په شاوخوا راڅرخیدې، پخپلو خبرو کې یې د افغانستان د نورو ښکلو سیمو چې دوی د جګړې په وخت کې لیدلې وې یادونه هم وکړه.

هریوه خپلې خپلې خاطرې بیان کړې.

هاشم پخپله سیمه کې د هغو باغونو او منظره لرونکو کلیو یادونه هم وکړه، چې د شکور په امر بمبارې شوې وې او اوس یې ښکلا بایللې ده، شکورهم بې ځوابه نه و، ده هم د هغو ځایونو نومونه واخیستل چې د هاشم په امر په راکټونو وران شوي و، ده په کابل کې د تیرې میاشتې جګړه یاده کړه چې د کابل د بابر بڼ پکې ویجاړ شو.

خو ددوی دواړو خبرو نه د ګیلو بڼه لرله او نه یې دا هڅه کوله چې یوبل ملامت کړي،بس هسې خبرې ترخبرو پورې یادیدې.

شکور په خندا ورته وویل:

ـ یره قومندان صاحب په زړه کلا کې خو دې ډیر خلك بلې دنیا ته ولیږل.

هاشم په موسکا وویل:

ـ ځې کوې دتاسې خو په ګټه وه.

ـ څنګه؟

هاشم په هماغه انداز وویل:

ـ د ماله هرې وژنې سره دتاسې د تبلیغاتو د تبرڅوکه تیریدله.

شکور د تائید په علامه سر وښوراوو:

ـ هو والله دغسې خو ده، خو په شینکي کلي زه هم عمیقًا متاثره شوم.

چې هاشم څه ونه ویل ده پوښتنه وکړه:

ـ رښتیا هغه دې ولې ټول داسې په یوه ځای تر تیغ تیر کړل؟ هغه مسئله مانه تل مورد د سوال وه.

ـ ورك یې که. هغو ډیر په غوصه کړم. په هغه وخت کې مې دا د مشرې ښځې کوچنې ورور ډیر راباندې ګران و هغه یې د ځمکې په کومه معامله کې په ټولو سره وهلی و. زه هم په هغه ورځ ډیر ستړی وم غوصه راغله ټول مې ووژل

هاشم دا خبرې په داسې انداز کې کولې لکه چې د خپل ژوند یوه په زړه پورې خاطره بیانوي.

شکور وخندل

ـ ژوندی خو دې یې، ښه سیاست خو دې وچلاوو. قاطعانه برخورد چې هرڅوك ولري په صورت قطع د تائید وړ وي.

ـ پوښتنې مه کوه. د تاهم د مړو حساب یوه خدای ته مالوم دی خو دا دعا کوه چې نامعلوم قبرونه رابرسیره نه شي.

شکور د بند د اوبو په منځ کې د موټر په ټیوپ یوه سپاره کس ته په ځیر ځیر وکتل. داسې یې ښودله چې د هاشم خبرې نه اوري.

خو هاشم پرېښودونکی نه و:

ـ ولې داسې خپه شوې. دا خو مې د آئینې یو کونج درته وښود. که ټول مخ پکې ووینې څه به کوې.

شکور چې هماغسې اوبو ته کتل:

ـ دا زما او ستا جګړه نه وه. دواړه اقتصادي او اجتماعي فورماسیونونه یو دبل د نابودي په جهت کې فعال و. دا چې کوم یو د متلاشي کیدو جهت لري. راهبردونه یې معلوم نه دي.

هاشم څه ونه ویل

شکور په نصیحت وویل:

ـ ورك یې کړه قوماندان صاحب آئینې مه را اخله، ښه به داوي چې آئینې په ګډه سره ماتې کړو

قوماندان د روغې په علامه لاس ور اوږد کړ

ـ واچوه، دا خبره مې د ې خوښه شوه آینې به داسې زرې زرې کوو، چې هیڅوك ځان پکې ونه ګوري

شکور وویل:

ـ پدې جهت کې موږ باید یو کامل تفاهم ته ورسیږو.

دواړو لاسونه سره ورکړل. شکور په خندا وویل

ـ د پوښتنې سړی دې خدای په دې ملك کې نه پیدا کوي جواب مواب له کومه شي، د ډیرو حقوق تلف شوي دي.

هاشم په ټوکه وویل:

ـ رښتیا په متینګو کې دې سخت تبلغات راپسې کول چې هاشم مزدور دی، هاشم غوبه دی .... خپلو رهبرانو ته مو پام نه و. چې د بل په ټوك رالوی شوي ول.

دواړو وخندل، هاشم پسې زیاته کړه:

ـ مزدور مو سپکاوو بیامو د کارګر او مزدور نارې هم وهلې بلا خلك وئ.

شکور په خندا وویل.

ـ هغه لکه ستاسې نارې د نورو لپاره وې نه د ځان لپاره. اوس به د آئینو غم کوو چې کومه روغه پاتې نه شي.

دواړه په خندا موټر ته وختل شاوخوا ناست خلك ددوی د موټر په د وړو کې پټ شول.

# اته ویشتم څپرکی

د رئیس پرمیز پراته لست کې د یاسمین نوم هم په پنځمه ګڼه کې لیکل شوی و. هاشم یوځل بیا لست ترنظر تیرکړ، د میز له قلمدانی څخه یې یو قلم راواخیست ځینې نومونه یې پرې نشانې کړل.
لست یې په شنه کاغذي دوسیه کې ځای په ځای کړ او د میز په خانه کې یې ترنورو دوسیو لاندې کېښود، د میز پر سر زنګ باندې یې ګوته ټینګه کړه یو سپین ږیری سړی چې د رئیس د دفترپیاده و، راننوت او د امر په انتظار د دروازې خواته ودریده.
رئیس تر میز لاندې د باطلو کاغذونو په ټوکرۍ کې لاړې تو کړې، مخکینۍ دوسیه یې بیا راواخیسته په لست یې سترګې وغړولې. ښه شیبه یې د نومونو په لوستلو تیره کړه سر یې راپورته کړ سپین ږیري ته یې وویل:
دادحقه د اجرائې مأموره یاسمین راوغواړه.
رئیس په خوله کې ژبه تاوراتاو کړه، د کاغذونو ټوکر مۍ یې را پورته کړ، څوځله یې لاړې پکې تو کړې، له ځایه راولاړشو، خپل پلنګي جمپر یې د دفتر په کونج کې په ولاړ کوټ بند راوځړاوو.
بیرته په خپل ځای کیناست د میز پر سر پرتو کاغذونو په لوستلو بوخت شو.

ددروازې په خلاصیدو سره یې د تیلفون غوږی راواخیست او یوه نمره یې دایله کړه:

دوه ځله یې بلې بلې وویل خو له هغې خوا چا ځواب ورنه کړ بیا یې نمره دایل کړه، بلې بلې.

په غوسه یې د تیلفون غوږی په تیلفون وویشت.

دادحق ته یې چې په دروازه کې د یاسمین شاته غلې ولاړو په قهر وویل:

ـ دا تیلفون بیا څه بلا وهلی؟

دادحق په عاجزۍ وویل:

ـ والله که خبر یم صیب.

ـ راشه وې ګوره والله که خبر یم، اوله دې سره یې یاسمین ته د کیناستو اشاره وکړه.

دادحق تیلفون د میز بل سرته کش کړ، پوه شو چې د تیلفون مزی غلاشوی دی رئیس ته یې مخ را واړاو:

ـ رئیس صیب د تیلفون لین نشته.

ـ څنګه نشته څه شو؟

ـ والله که خبر یم، دشپې دلته ستاسې کسان پیره کوي.

ـ هوم نوته وایې چې هغو به وړی وي؟

ـ زه به یې پوښتنه وکم، د مدیرصاحب علی خان تیلفون هم ورك دې.

رئیس نور د هغه خبرو ته غوږ ونه نیو یاسمین ته یې مخ راواړاوو:

ـ ښه د تا نوم یاسمین ده؟

ـ هو یاسمین.

ـ ښه ښه ډیرښایسته نوم دی.

یاسمین څه ونه ویل، ځان یې د چوکۍ د څنګ په راوتلی اسفنج

بوخت کړ. رئیس پورته ورته وکتل، د میز پر سر کاغذونه یې سره واړول راواړول

ـ ښه ښه، نور؟

رئیس نه پوهیده څه ووایي، که وار له واره د لستونو خبره رایاده کړي ترې خپه به شي، ښه یې وبلله چې د لست خبره د فشار د وروستۍ وسیلې په توګه له ځانه سره پټه وساتي.

پوښتنه یې وکړه

ـ څنګه له کاره دې راضي یې؟

یاسمین لنډ ځواب ورکړ.

ـ هو.

رئیس د خبرو په حال کې قلم هم په کاغذ خوځاوو، داسې معلومیده لکه چې دا خبرې لیکي، خو هغه هسې کرښې وړې کرښې په سپین کاغذ ایستلې. د یاسمین لنډو ځوابونو په تنګ کړی و ناسنجول شوي یې وویل

ـ زه حیران یم چې ستا غوندې ښکلې نجلۍ څنګه دلته کارکاوو.

ـ څه ووایم، نصیب قسمت دی. څوك دلته، څوك هلته.

د یاسمین خبرې نرمې وې خو ځیره یې جدي وه د خبرو په وخت کې یې رئیس ته سم نه کتل. کله به یې ځمکې او کله هم له مخامخ کړکۍ نه دباندې کتل

خو رئیس دواړه سترګې په دې کې خښې کړې وې، د هغې هر حرکت یې څاره. لکه یو مستنطق چې د تورن په ځوابونو کې رینښتیا دروا‌غ معلوموي.

له یاسمین څخه دده دا حرکتونه پټ نه ول. هغې هم دده د هر حرکت په مقابل کې په بې اعتنایي سره غبرګون ښود.

رئیس ښکته پورته ورته وکتل، له ځایه راولاړشو، د کړکۍ خواته ولاړ، بیرته راوګرځید لکه چې لومړی ځل یې د یاسمین سپینې غاړې ته پام شوی وي د خپل میز په سر له کاغذداني څخه یې یو کاغذ راواخیست خو سترګې یې د یاسمین په غاړه کې خښې کړې وې. قوماندان هاشم تر اوسه د کومې پردۍ ښځې غاړه داسې نه وه لیدلې. په دفتر کې یوې بلې خواته راته، چې د یاسمین مخې ته را ورسیده داخل یې یوه سترګه چپه کړه، داسې یې په څنګ ورته وکتل لکه تږی چرګ چې په صراحی کې اوبه ګوري.

د یاسمین په غاړه کې له سرو زرو جوړې شوې نقشې د هغې د دواړو تیونو بیخونه پټ کړي ول، د افغانستان له نقشې څخه جوړ شوی د سرو زرو امیل به د یاسمین له نرمو حرکتونوسره یوې بلې خواته ولاړ. خو دهاشم د سترګو یو لوی خنډ و.

هاشم بیا د کړکۍ خواته ولاړ له کړکۍ نه یې د باندې وکتل ویې ویل

ـ که ته له ما سره په یوه لاره ولاړه شې، په سرو زرو کې به دې پټه کړم.

یاسمین په بیړه ځواب ورکړ:

ـ که په ډبرو کې ګلان راټوکیدای شي نو دوه لارې هم یوکیدای شي.

ددې د خبرو په وخت کې هاشم دباندې کتل او د خبرو په وخت کې یې د هغې شرمناکې او په عین حال کې قهرجنې څېرې ته پام نه و. ښایي له همدې امله یې د خبرو په معنی نه وي پوهیدلی. بیرته د خپلې چوکۍ خواته راغی. خپل ځادر یې چې له څوکۍ څخه راځړیدلی و، بیرته سره ټول کړ او په هماغه چوکۍ کیناست د خپلو خبرو په ادامه یې وویل:

ـ له ما سره هرڅه شته. مال، پیسې او هرڅه چې وغواړې. زه چې له کومه ځایه تیریږم ځمکه خپل تنفس بندوي.

یاسمین نور څه ونه ویل، د کوچ نه د راوتلی اسفنج وړې وړې ټوټې یې په ګوتوکې سرویلې، لکه چې داهم هغه ځمکه وي چې د قوماندان په تیریدو سره خپل تنفس بندوي، چوپ وه هیڅ یې ونه ویل.

پړونې یې په سرسم کړ او د ولاړیدو تابیا یې ونیوله. خو د رئیس پرله پسې خبرو چې د ځان او خپلو شتو په ستاینه څرخیدلې، د وتلو مجال نه ورکاوو.

کله چې د هغه خبرې خلاصې شوې ویې ویل:

ـ په دفترکې کارونه زیات دي، اجازه ده چې ولاړه شم.

اوله دې سره له ځایه راولاړه شوه.

هاشم د هغې له غوصه ناکې څیرې پوه شو چې خبرو یې وربانده‌ې چندان اغیزه نه ده کړې خپل وروستی ګوزار یې را ړومبې کړ ویې ویل:

ـ یه، ته مه ځه، دلته ماته یولست راغلی دی.

ـ دڅه شي لیست؟

هاشم لست ورته وښود ویې ویل:

ـ دا دهغوکسانو لست دی چې کمونستان ول، او یا روس ته تللي ول.

چې وي لیدل د یاسمین په څیره کې بدلون راغی پسې زیاته یې کړه:

ـ او ستا نوم په دواړو لستوکې شته. اوس ته ووایه، زه څه وکړم؟

یاسمین ځای په ځای ولاړه وه. لکه چې ددې وروستي ګوزار ددفاع وس یې نه درلود، ورو یې وویل:

ـ یوه چاره یې وکه.

ـ دانوڅه چاره لري، اوس کار ترکار تیر دی. لستونه نیول شوي دي، دا کسان باید له وظیفو ګوښه او بندیان شي.

د یاسمین په سترګو کې اوښکې ډنډ شوې، مخ یې بلې خواته

واړاوو چې رئیس یې ونه ویني، د چای خوړلو د میز پر سر په پرته ورځپاڼه ورتیټه شوه، هسې یې مخې ته ونیوله. بیرته یې پخپل ځای کیښوده. رئیس ته یې وویل:

- رئیس صاب ټول کارونه له مجبوریته کیږي.

هاشم وخندل.

- روس ته تګ هم له مجبوریته کیږي؟

- څه ووایم، خیردی، ته یې یوه چاره وکه.

رئیس یوه شو چې وروستی ګوزار یې پخپله ښکلا مغروره یاسمین د غرور له نیلي راکوزه کړه.

- چاره خو یې ډیره سخته ده، خووبه ګورو چې څه کیږي؟

# نه ویشتم څپرکی

سهار د هاشم ملگرو دهغه په دفترکې تود مجلس جوړ کړی و.

هاشم لادفتر ته نه و راغلی. سموت ویل چې هغه د سهار له لمانځه وروسته ترلسو بجوپورې بیا ویده کیږي او شکر خوب کوي.

څوشپې کیدې چې قوماندان هاشم له دوی څخه خپل د اوسیدو ځای بیل کړی و، اوس ددوی لیدنه یوائې په همدې دفتر کې کیدله.

ښایي همدا علت به و، چې اندیوالان یې په ده بدگمانه شوي ول.

پخوا به دوی د ورځې په یو موټر کې گرځیدل، خو اوس هغه ته تنظیم بل موټر ورکړی و، او دوی ته پخوانی موټر پاتې و، د مرکزي کمیټې په ودانۍ کې ددوی د گډې خونې له دروازې څخه هغه لوحه چې پرې لیکلي و. «د قوماندان محمد هاشم د اندیوالانو اطاق» هم ایسته شوې وه.

قوماندان هاشم اوس په وزیر اکبرخان مینه کې په یوه کور کې اوسیده، ویل کیدل چې کورته یې وخت ناوخته ناپیژندل شوي کسان او آن ښځې هم راځي. ددوی د نن ورځې د مجلس موضوع هم همدا وه.

سیدامین چې د کړکۍ خواته په کوچ کې په یوه ډډه پروت و. راجگ شو پښې یې پخ بلو څپلیو برسیره چې د کوچ خواته یې ایښې وې کیښودې ویې ویل.

- یره زه چې ورته گورم هاشم ډیر بدل شوی دی چې دا ولې؟

خان مومین په تائید وویل:

ـ د هاشم اخیره خاتمه د بدو شوه.

یو بل وویل:

ـ چوکۍ سړی خرابوي.

سموت چې له بوټونو سره په کوچ کې اوږد غځېدلی و او خپل پکول یې په لاس کې ګډاوو راپورته شو وې ویل:

ـ مطلب دا ټول دې ښځو له کار ویوست.

خان مومین وویل:

ـ ته وا دا به د ښځو تاثیر وي؟

ـ هو نو، نه یې وینې، چې مطلب ښوی ښوی ورسره کېږي پوه شوې که پوه نشوې، ږیرې ته دې پام نه ده، مطلب بس مازې یوه چاړه پاتې ده چې پې را تیره یې کړي.

درمحمد وویل:

ـ دا ټول دغې یوکچنۍ له لارې ویوست.

سموت وویل:

ـ ورك یې که مطلب ټولې دغسې دي، رحمان بابا څه ښه فرمایلي دي چې «لانت کې په زنان که مور وي د سلطان» او بیا یې په شد او مد د سلطان محمود غزنوي د مور کیسه داسې تیره کړه لکه چې دده مخ ته پرون تیره شوې وي.

چې دده خبرې خلاصې شوې، اکبر وویل:

ـ که زما منئ زه خو وایم چې سارایي محکمه به جوړه کړو.

ـ ښنګه محکمه دا تیرې محکمې دې لکه چې بس نه شوې؟

اکبر وویل:

ـ یه یه هغه خو د نارینه وو وې، اوس به د ښځو لپاره وي.

ـ څنګه؟

ـ بس لکه د رؤف غونډې چې چیرې مو لوڅ مخې ښځه لیدله مخ ته به یې تیزاب شیندو، یا به یې ځای په ځای وژنو.

انورتائید کړه:

ـ والله که دې بده خبره کړې وي اول به دا یاسمین ده که څه بلا ده، دا وژنو.

خو سموت د نصحیت په ډول وویل:

ـ خبره زمونږ په سرې کې ده پوه شوې که پوه نشوې دا باید لارې ته راولو، مطلب دده پرتوګ له شکور سره بدل شوی دی، څه چې هغه کول اوس یې دی کوي.

ـ نو ته څه وایې چې څه وکړو؟

ـ زه وایم چې مطلب له ده سره به خبرې وکړو پوه شوې که پوه نشوې ورته به ووایو چې اول دا یاسمین له ځانه لرې کړي.

اکبر وویل:

ـ نا اوس په هغه ډیره ګرانه ده. ځان به ورك کړي هغه نه ورکوي.

سموت په غوصه وویل:

ـ چې راسي زه دا ټول ل ل ل ....

دروازه خلاصه شوه، قوماندان محمد هاشم له خپلو بریګاډانو سره په دفتر راننوت.

سموت خپله خبره واړوله.

ـ هو والله زما هم ډیر بد ایسي.

هاشم چې په خپل ځای کیناست دا نورو ته یې مخ راواړاوو:

ـ بیا مو په چا کې میده کړې ده؟

له سموت نه لاره ورکه وه نه پوهیده څه ووایي ځان یې تیر کړ:

- هسې يوه خبره وه ورك يې كړه.
- ځوك مو ميدان ته راچولي و، زه خوبه مو نه يادولم
- يه يه تا به ولې يادوو، دا شكور ملحد مو سره ياداوو
- ولې هغه څه كړي دي؟
سيد امين په تمسخر وويل:
- هغه هيڅ هم نه دي كړي، نه يې ځوك وژلي دي نه يې په كليو بمباري كړي دي نه يې چاته ....
هاشم يې خبره پريكړه:
- پريږده دا خوښې خبرې.
سموت هم جرأت پيدا كړ ويې ويل:
- مطلب ټول اندېوالان وايي چې تاسې كه ځوك وژلای اول مو بايد دا سركوزي خوندي كړې وای مطلب تاسې نور غريبان ووژل دی مو ملګری شو.
هاشم په نصيحت وويل:
- ګوره سموت ګله ته خو شكر هوښيار سړی يې، هغه لاس چې نشي پريكولې ښكل يې كړه.
له ځايه راجګ شو په قدم وهلو يې پيل وكړ پسې زياته يې كړه:
- په دې خبرو سر مه خوږوئ.
كه پدې خبرو پسې ګرځيدئ ږيرې به مو ژر سپينې شي.
ياسمين چې دفترته راننوتله لكه چې انتظار يې نه درلود چې له هاشم سره دې دومره كسان ناست وي وارخطاشوه. بيرته شاته وګرځيده په داسې حال كې چې په يولاس يې دروازه تړله په ټكني غږ يې وويل:
- سلام
خو چا يې د سلام ځواب ونه وايه. ناستوكسانو يوبل ته وكتل.

هاشم خان د میز په سر په کاغذونو بوخت کړ یاسمین یوې بلې خواته وکتل. د رئیس د میز په لوري روانه شوه ویې ویل:

- رئیس صاحب زه مو پکاروم؟

اوس نو وار د هاشم و چې وارخطا شي.

- ته ته هو رښتیا خطونه هغه مکتوبونه هغه به ....

یاسمین ورسره مرسته وکړه:

- هغه پروني مکتوبونه دې لاسلیك کړل؟

- هو هو ماهم هغه مکتوبونه یادول. داسې ده چې هغه والله که پوهیږم چې هغه څنګه وو، وروسته، لږ وروسته راشه

ناستوکسانو د سترګو له کنجو یاسمین ته کتل.

اکبر د خان مومین لاس چې د کوچ په څنګلي یې دده خواته اینښی و وسکونډ ورو یې وویل:

- دکافر لور اور لګوي.

خان مومین ترڅنګ ورته وکتل خو اکبر یاسمیني ته کتل ده ته یې ورپام هم نه و.

یاسمین ددروازې په خوا روانه شوه، له هاشم، پرته ټولې سترګې پسې وې.

د یاسمین له وتلو وروسته دوی هم یویو پاڅیدل.

# دیرشم څپرکی

یاسمین په ځان کې یو پټ احساس لیده، چې په مقابل کې یې مقاومت ورته ناشونی ښکاریده. له څه وخته راهیسې یې هم په چلند او هم په څیره کې بدلون راغلی و، دواړه لاسونه یې د سرو زرو له بنګړو ډک ول، غاړه یې هم د افغانستان د نقشې پرځای په نسبتًا غټه اسم الله او نري امیل ښکلې کړې وه. اوس یې د پخوا په څیر ټوکې نه کولې که به چا د مینې کومه خبره یاده کړه دې به ژر خبره واړوله.

اوس یې په دفترکې د خپلو خورلڼو د ټوکو په ځواب کې دا نه ویل چې دا او هاشم د یوه لوی سیند دوه غاړې دي چې هیڅکله به سره نږدې نشي.

دا په خپلو هغو خبرو پښیمانه وه چې خپلو همکارانو ته یې ویلې و چې دا له هغو ښځو څخه نه ده چې له هر چا سره په خلاصه تندي او موسکا خبرې وکړي.

دا په هغو نومونو هم پښیمانه وه چې په لومړیو ورځو کې یې په هاشم ایښې ول.

له هغې ورځې چې ددوی په اداره کې د نارینه وو او ښځو دفترونه سره بیل شوي ول. او نورې ښځې ددې او هاشم. له پټو اړیکو څخه خبرې شوې وې. ټولو میرمنو به دا ځوروله ځینو به پرزې پرې ویلې چا به ټوکې

پرې کولې او ځینو خوآن خبرې هم نه ورسره کولې. دا هم د نورو میرمنو له دې ډول چلند څخه په تنګ شوې وه خو چاره نه وه، ځکه د ادارې د میرمنو لپاره همدا یوه لویه کوټه چې پخوا د محاسبې مدیریت و، په نظر کې نیول شوې وه.

رئیس هاشم ورسره وعده کړې وه دې او ددې څو نورو خاصو ملګرو ته به ځانګړې دفتر ورکوي، خو تر اوسه یې لا دوی ته دفتر نه و پیدا کړی. یوځل یې په څلورم منزل کې د بل ریاست یو دفتر ددوی لپاره خلاص کړ، هلته راکټ ولګیده او د دفتر یو دیوال یو مخ له منځه ولاړ.

نن هم چې دا د هاشم له دفتره راغله، نورې همکارانې پرې ورټولې شوې، دپخوا په شان ټوکې او مسخرې وې دیبا د چای پیاله د یاسمین مخې ته کیښوده په معنا داره غږ یې وپوښتل

ـ ښنګه یاسمین د سیند او به خو به نه وي وچې شوې؟

یاسمین لکه چې ددې په کنایه پوه شوې نه وي وویل

ـ ولې څه؟

ـ هسې ما ویل وچکالي ده. چې د سیند دواړه غاړې سره یو شوې نه وي

ټولو وخندل. یاسمین ځان نه بایلود ویې ویل

ـ څه ګډې وډې سره وایې؟

ـ چې اوبه نه وي نو سیند وچیږي او دواړه غاړې یې سره نږدې کیږي.

دا نوروته یې مخ وروواړاو

ـ که ښنګه همداسې نه ده؟

ټولو وخندل

ـ حتمًا. حتمًا. ښنګه به نه سره نږدې کیږي.

د خندا آواز لوړ شو.

شکیبا ظاهراً خبره واړوله:

ـ یاسمین دا اسم الله دې په څو واخیستله، ډیره ښکلې ده

یاسمین ترولی شوه:

ـ دا هو دا ډیره ښایسته ده.

شگوفې په خندا وویل

ـ څه یې پوښتې، څه دې خو نده اخیستې؟

نیلا په مسخرو وویل:

ـ رښتیا وایې، دا خواره څه پې خبره ده. دا شنه غمي یې په یاري گټلي دینه.

ټولو خندل. د یاسمین د مخ سرخي زیاته شوې وه ټولو خندل، نږدې خاصو ملگرو یې هم له هغو سره خندل.

یاسمین په غوسه شوه:

ـ تاسې ښځې خو که هرڅومره تعلیم هم وکړئ بیاهم حسادت نه پرېږدئ.

مرضیې ورغبرگه کړه:

ـ نو ته څوك یې، ته لکه چې ښځه نه یې؟

ـ یم خو ستاسې غوندې نه.

له دې سره یې خپل کوچنې بکس غاړې ته واچاوو. را ولاړه شوه

ـ چیرې ځې؟

ـ خپه نه شې. موږ خو هسې ټوکې کولې

یاسمین په دروازه کې وویل

ـ شفاخانې ته ځم بیرته ژر راځم.

یوولسو بجو ته لا پنځه ویشت دقیقې پاتې وې، یاسمین په ښار کې

سوکه سوکه روانه وه، څو دکانونو ته ودریده خوځه شی یې وانه خیستل، لس کمې یوولس بجې وې چې د فروشګاه مخې ته ورسیده، د کبابي مخې ته د قوماندان هاشم لندکروزر ولاړ و په لیدو یې خوشحاله شوه مخامخ موټر ته ورغله. خو د موټر دروازې تړلې وې ښیښې یې تورې وې دننه هم څوك نه ؤ پکې معلومیدل نیت یې وکړ چې د وعدې په ځای کې ودریږي خو په دې وخت کې هاشم چې لویه پلاستیکي کڅوړه یې په لاس کې وه راغی د یاسمین په لیدو په بریتونو کې موسکی شو، دروازه یې خلاصه کړه:

- راځه ژر خیره.

موټر د وزیر اکبرخان مینې په لوري په بیړه حرکت وکړ. هاشم موټر دګاراج په ځای په انګړکې ودراوو.

شاوخوا یې وکتل یاسمین ته یې وویل:

- راځه د پاچاهي ځای ووینه.

دواړه په دویم پوړ کې د خوب کوټې ته ولاړل په څو شیبو کې د میز پر سر درې ډوله کباب، میوې او بوتلونه کیښودل شول. کوټه ګډه وډه وه، د دروازې خواته چلمچي له اوبو ډکه ایښې وه، او په سر یې د منهو پوستکي پراته ول، د خوب د تخت روجایي هم ټوله شوې وه، د تخت سرته له میزنه سګرټ داني رالویدلې وه او د سګرټو ایرې په غالۍ تویې شوې وې، د پخوانۍ دیوالي بخارۍ دروازه خلاصه پاتې وه، او د ممپلیو او بادامو پوټکي پکې پراته ول.

هاشم ژر ژر په کوټه کې اضافي شیان ټول کړل. یاسمین د تخت خواته په یوه چوکۍ غلې ناسته وه، له ده سره یې په کار کې مرسته نه کوله، ښایي په دفتر کې د خوړلنو له خبرو ځوریدلې وه.

د هاشم ټوکو یې هم په شونډو موسکا را نه وستله خو دا خواشیني

يې د ډوډۍ په مينځ کې ورو ورو ورکه شوه اوس يې نو خوله له خندا نه سره ورتله. دواړو خندل په کوټه کې ګرمي زياته شوه. دخپل کميس دوه تڼۍ يې خلاصې کړې. هاشم پردې واچولې خو دوه کړکۍ يې خلاصې پرېښودلې.



د ماښام تياره خوره وه چې هاشم رڼا ولګوله. ياسمين ټينګار کاوو. چې کور ته يې ورسوي. خو هاشم ټکنی و. له حالاتو پوره خبر نه و، له غرمې راهيسې يې له خپلو وسله والو کسانو او پوستو سره مخابروي اړيکې پرې کړې وې.

خپل نږدې وسله وال يې هم چې دده د ساتنې ترڅنګ به يې له حالاتو هم خبراوو رخصت کړي ول.

ياسمين ته يې وويل چې شپه تيره کړي. خو هغې تلوار درلود او د پاتې کيدو نه وه دا لومړۍ ځل و. چې هاشم په هغې په غوسه شو

ـ رښتيا چې تاسې ناقص العقل ياست. دا وخت دتلو نه دی

ـ نه نه زه ځم. ټوله ورځ درسره وم

ـ هسې نه چې په کومه بلا مې واړوې

چاره نه وه ياسمين يې د شا په سيټ کې کينوله او په مړو څراغونو يې د زړو مکرويانو په لوري حرکت وکړ

د عامې روغتيا په څلور لارې کې دوه تنه وسله وال د سړک په منځ ولاړ ول. او دواړو موټر ته مخامخ ټوپک نيولی و. هاشم موټر ودراوو. دروازه يې خلاصه کړه

ـ څه خبره ده، چې د سرك په منځ کې ولاړ ياست؟

ـ راکوزشه. ته څوك يې. چې داسې بړ بړ غړيږې؟

هاشم پوه شو، چې څلور لارې بل ګروپ نیولې ده.
څنګ ته یې په تیاره کې لاس وتپاوو، تفنګچه یې په لاس ورنغله.
وسله وال تر مټ ونیو، لاندې یې راګوزار کړ
ـ راښکته د خان زو، زه درته وایم راښکته ته لا کلانکاري کوې.
وسله وال د شا دروازه خلاصه کړه یاسمین غلې ناسته وه.
وسله وال یې مخې ته لاسې ځراغ ونیو:
ـ هوم راکوزه شه.
یاسمین ځان سره ټول کړ. د موټر په سیټ پورې یې ځان ونښلاوو.
وسله وال په غوصه وویل:
ـ راکوزه شه ځان مه راباندې ..
بیا یې وپوښتل:
ـ دا سړی دې څه کیږي؟
ـ دا مې خاوند دی؟
ـ افرین.
اوله دې سره یې د یاسمین لاس ونیو د ځان په خوا یې راکش کړه.
بل وسله وال ته یې مخ ورواړاو
ـ ضیا دا زما کوټې ته بوزه
ـ نه نه زه خپل میړه ته ورځم.
وسله وال په بې اعتنایي سره وویل:
خیر دې نن شپه دې میړه بدل کړه
وسله والو یو په یوه خوا اوبله په بله خوا بوتلل.

# يو ديرشم څپرکی

ملوك ترپخوا غلی و. په ښار کې د هرنوي خبر په اوریدو به یې یوازې سر وښوراوو وبه یې ویل.

ـ خدای دې د نیکو هدایت ورته وکړي.

دی پخپلو پخوانیو خبرو پښیمانه معلومیده.

داڅو ورځې چې جګړې نه وې نو ملوك او کلاخان به دواړه په بایسکلونو سهار له ښاره وتل او له چهار آسیاب او دوغ آباد څخه به یې اوړه او غوړي راوړل.

دا یوه اوونۍ د اوړو او غوړو راوړل ددوی ورځنۍ دنده ګرځیدلې وه.

په څوتیرو ورځوکې دوی د خپلو کورنیو اړتیاوې پوره کړې وې او د جګړو له ویرې یې ترخپلې اړتیا زیات اوړه ذخیره کړي ول. کلاخان هم له جګړو دمخه خپله کورنۍ کابل ته را لیږدولې وه خو په لومړیو جګړو کې یې کشر ورور ګلاخان ورك شو.

خو نن هریوه پنځه پنځه منه اوړه او یویو پیپ غوړي دخپلو بایسکلو په کنجوغو تړلي ول.

د کلاخان بایسکل پنچر و. ځکه دواړه پلي له بایسکلونو سره روان ول.

څه پيسې چې ورپاتې وې د لارې پاټکونو ترې وړې وې، له کلاخان ځخه وروستي زرګون هم چې د بايسکل د پنچرۍ د نيولو لپاره يې د کميس د څنګ په جيب کې خوندي کړي و . په سرك ولاړيوه وسله وال اخيستي و. اوس نو له هغو پوستو او پاټکونو راتيرشوي ول، چې د خوراکي موادو او تيلو له راوړونکو ځخه د باج اخيستلو لپاره ګام په ګام جوړشوي ول.

دوی هغودوو وسله والو چې د سرك په منځ په چوکيو ناست ول ودرول. يوتن چې ژاولې يې ژولې او په خوله کې به هر وار رااړولو به يې ټك ترې ويوست ددوی مخې ته راغی:

ـ دا قاچاق چيرې وړئ؟

ـ قاچاق نه دی اوړه اوغوړي دي خپلو کورونو ته يې وړو.

وسله وال هغه بل ته مخ وروااړاوو په خندايې وويل:

ـ زلګی ويني يې؟

زړګي چې خوله يې د جوارو له پوليو ډکه وه په ډکه خوله وويل:

ـ ته يې قاچاق ماچاق څه کوې خپل حق ترې واخله پرېږده چې خپله لار وهي.

هغه بيرته دوی ته مخ وروااړاوو.

ـ واموورېدل؟ پيسې راوباسئ.

ملوك وويل:

ـ پيسې خوهغو نورو ليوانو يووړې، والله که ټنګه هم را پاتې وي.

خو وسله وال پرېښودونکی نه و. له ډيرکش وګير وروسته يې دواړه تلاشي کړل چې ويې ليدل پيسې نه لري، خپل ملګري ته يې مخ وااړاوو:

ـ دا خو يو هم پيسې نه لري.

د کلاشينکوف ميل يې ددوی په خوا ونيو.

ـ ښنګه اول کوم يو وولم؟
دواړه ژېړ زبيښلي ولاړ ول، هيڅ يې هم نه ويل.
زړګی چې اوس د پوستې ترمخ د يوه لوی عکس لاندې ولاړ و، پرې غږ وکړ:
ـ مه يې وژنه، بيا به دا مړزګې له دې ځايه څوك وړي، له بويه به يې ليوني شو.
ـ دغسې خو يې نه پرېږدم.
زړګی ورته وويل:
ـ نو څه ترې غواړې، پيسې نه لري نور خو په دې کنډوالو کې نه بايسکل په کار راځي نه اوړه.
ټوپکوال ملوك په ښټ کې په قنداغ وواهه ويې ويل:
ـ تاخو والله که همداسې پرېږدم، ډېر هوکي مالومېږې. څه چې بيا په دې لار را نشې.
دواړه په بېړه روان شول، ترڅنګ به يې کله کله شاته وکتل چې لر لرې شول ملوك وويل:
ـ عجب خلك دي، انسان داسې ورته ښکارېږي لکه توبه نعوذبالله دوی چې پيدا کړی وي.
کلاخان په خندا ورته وويل:
ـ ياره کاشکې ټول مجاهدين ستا په شان وای.
ـ خدای دې خوار نکړه، ټول اصيل مجاهدين زما په شان څه چې تر ما ډير ښه دي.
ـ که خپه کيږې نه دا خو درسره نه منم، عجيبه داده چې ته ښنګه پکې وې.
ملوك وخندل

ـ ته یې چې نه منې مه یې منه، خودا ټولې دنیا منلې ده چې مجاهدینودا وطن له لوی ښامار څخه خلاص کړ.

ـ دادې منم خو زه چې اوس دغوته ګورم، په نوم یې شرمیږم. وګوره څه یې ونه کړل، غلا، چور، ظلم، تیری، داټول مو ولیدل.

ـ لیونیه داهسې د مجاهدینو په نامه تجارت کوي، د مجاهد بلا پرې وګرځه، مجاهدین هغه ول، چې له روسانو سره وجنګیدل. شهیدان شول، څوك چې ژوندي پاتې سول ټوپك یې ایسته وغورځاوو د وطن د آبادي لپاره یې ملې راونغاړلې او په ..

کلاخان په یوه رنګ دوکان ځړیدلي عکس ته اشاره وکړه.

ـ او دا؟

ـ دا هم د وطن دښمنان دي هم د مجاهد، مجاهد د چا میرمن په زور نه بیایي، مجاهد په چا ظلم نه کوي.

ـ خودوی وایي چې روسان موږ وایستل، وطن موږ آزاد کړ.

ملوك په غوصه وویل:

ـ ددوی خولې څوك تړلای شي، د کوم رهبر زوی، ورور، خوریې، اوښې، د ترور زوی، د ماما زوی، د کاکا زوی او نورخپلوان جنګ ته تللي دي؟ دوی خود نورو غریبو په وینو تجارت کاوو، د نورو په وینو یې بنګلې جوړې کړې، د خوارانو په وینو یې ډالر پیدا کړل.

کلاخان په بې اعتنایي وویل:

ـ اوس خودا دی دوی پاچاهي کوي، وایي چې د توري په زور مو ګټلې ده.

ـ دا د خپل ورور په وینو رنګ توره به که خدای کول ډیره ژر ماته شي د ناروا ځراغ تر ګهیځه نه لګیږي.

کلاخان په خندا وویل:

ـ په تاسې هم د مومین خان د ښامار کیسه شوی ده.
ـ هو خو هغه چا چې ښامار وژلی په کلي کې ناست دي. موزیان د ښامار تسمې په لاسو کې ګرځوي او چوکۍ پرې رانیسي.
چې کلاخان څه ونه ویل، ملوك په خندا ورته وویل:
ـ دتا دې پوښتنې ماته د هغې ښکلې ډاکټرې خبرې را یادې کړې.
ـ دکومې ډاکټرې؟
ـ په پاکستان کې چې زه په هسپتال کې بستري وم یوه ډېره مېربانه او ښکلې ډاکټره وه، د ما یې ډېر خدمت وکړ، داسې ښه نوم یې و، ژولیا، یوه ورځ مې ورته وویل: ارمان چې مسلمانه وای او له خدای‌ه منکره نه وای، دې وویل: چې زه په خدای ایمان لرم.
ما ویل عجیب ـ دې له واره وویل عجیبه دا نه ده، عجیبه داده چې موږ انسانانو ته چې خدای عقل راکړی ولې یوله بله کرکه لرو او یو دبل وینې تویوو.
کلاخان وویل:
ـ دا دې ترڅه وویل:
ـ دا مې ستا ترخبرې پورې وویل، عجیبه داده چې زه ولې مجاهد وم، عجیبه داده چې د تا غوندې نیك خلك ولې له موږ سره جنګېدل.
کلاخان سوړ اسویلی له خولې وایست.
ـ هی هی موږ هم دغسې درواخله لکه تاسې. زموږ ځوانان هم د نورو د هوسونو قرباني شول.
زموږ ځوانان نیك او پاك خلك ول، او په صداقت سره د وطن لپاره جنګېدل، خو خبرنه ول، چې څوك به یې د کعبې په ځای ترکستان ته بیایي.
ـ عجیب.

ـ عجيبه دانه ده، عجيبه داده چې اوس هم ځينې د رهبرانو تر شا تړلې سترګې روان دي، رهبران او غټان هرځای رهبران دي که دلته دي که هلته، پخپله مخکې خي او قافله کندې ته ورخطا کوي لکه چې وينې يې.

يو شعر مې را په يادشو:

خرڅوي يې رهبران په سوداګرو
خدای دې مل شي د وطن او د ملګرو
نه پوهيږې چې په کوم پلو دې بيايي
چې روان يې په ګډا او په سندرو

دوی په همدې خبرو کې ول، چې له هرې خوا د درندو وسلو ډزې پيل شوې تا به ويل چې د ټولې نړۍ وسلو کابل په نشانه کړی دی، پرله پسې ډزې کيدې دا معلومه نه وه، چې چا په چا يرغل کړی دی او څوک څوک ولي، درندو وسلو يو ډاروونکی غرهار جوړ کړی و.

# دوه دیرشم څپرکی

د وتلو لاره نه وه، څوك چې پوهيدل له لومړنيو جګړو وروسته يې ځانونه وايستل.

ډيرو خو ايله سرونه وايستل او نور ټول شته يې په ځاى پريښودل.

شمروزه په ملوك په غوسه وه. ده د ګُذرد وكيل خبره نه وه منلې چې ورته ويلي يې و:

ـ دا خلك زه پيژنم، په دې اور بند يې مه غوليږه دا هر يو بل جنګ ته ځان جوړوي.

شمروزې په هغه ورځ د خپل ورور ملوك خبره هم اوريدلې وه، چې د وكيل په ځواب كې يې ويلې و:

ـ دا دتاسې خبرې دي، كه خداى كول وروسته له دې به ټك هم وانه ورې. هرڅه چې و، تير شول.

خو دده خبره داځل هم دروغ ختلې وه.

جګړه پيل شوې وه، دا وار د هغو تنظيمونو ترمنځ جګړه وه چې په تيرو جګړو كې سره ملګري ول.

په تيره جګړه كې دښمنو ډلو اوس يو بل ته لاس وركړى و او د خپلو پخوانيو انډيوالانو په ضديې سنګرونه نيولي ول.

ملوك او هيواد د كوچنۍ تكاوي پخوانۍ دروازه بنده كړه او

د دربچې پـرځای یې چې د دهلیـز دروازې تـه نـږدې وه کـوچنۍ دروازه جوړه کړه.

دوی ټول اته کسه ول، په کـوچنۍ تکـاوي کې نه یـوازې کیناسـتلای شوای بلکې د شپې یې خوب هم پکې کولای شوای.

خو پرون سهار وختـي چې جګړه لږ ارامـه وه د کلاخان کـورنۍ هم ددوی کـور تـه ځانونـه راورسـول، کلاخـان وویـل: اولادونـو یـې تیـرې لـس دولس ورځې په رانه میدان تیرې کړي، خو د خدای فضل و . چې راکټ یې په کور نه و لګیدلی، پرون شپه د بیم ۱۳ یـوې ضربې د ددوی کـور هم بې برخې نه و . پرې اینبی ګولۍ د دوی پـه سالون لګیدلې وه، خو هغـه ګړۍ دوی ټول د سیوري پـه خونـه کې ناسـت ول، یـوازې د کلاخـان لاس لږ ټپي شوی و ، هغه هم خبنته پرې ورلویدلې وه.

ددوی پـه راتـګ ټول خوشحاله ول، خو تکاوي یې په دوی تنګه کړه، وروسته له هغه به ملوك، هیواد او کلاخان په پخلنځي کې چې د سـیوري خواته جوړه شوې وه او د توغندي له مخې چپه وه کیناستل.

ښځې او ماشومان پـه تکـاوي (زیرزمینـی) کـې اوسـیدل پخلـی هـم نارینـه وو کـاوو، ښځو خـو دا ځـو ورځـې لمـر پـه سـترګونه و لیـدلی خـو ماشومان به ددوی له منتونو سره سره کله کلـه راووتـل، پـه انګړکې بـه یـې لوبې شروع کړې خو هیواد به پـه زور بیرته تکاوي ته ننکته کړل.

ددوی لیدنه به یوازې د ډوډۍ وروړلو پـه وخت کې کیدله. کلاخان بـه چې ډوډۍ وروړه نو دوی ته به یې ډاډ ورکاوو

ـ انشاء الله جنګ دریږي ملګري ملتونه اوربند اعلانوي.

د ګل مرجان کوچني زوي (بهیر) پوښتنه وکړه:

ـ کاکا ملګري ملتونه ډیر زوره ور دي؟

ـ هو بچو. که وغواړي جنګ پـه یوه ورځ کې دروي

ـ د هغو زور په دغو رسیږي؟

ـ هو.

د بهیر پوښتنې نه تمامیدې:

ـ ملګري ملتونه څوکسه دي؟

ـ هغه کسان نه دي ددنیا له هیوادو جوړ یو سازمان دی.

بهیر په ناباورۍ وویل:

ـ بو، نو دیوه زور په اوو تنظیمو رسیږي؟

کلاخان به همداسې ووت، بهیر به نوروته په نا هیلي وویل:

ـ بیا به هم مکتب ته ولاړشو؟

ملګري ملتونه د کلاخان او ملوك لپاره پیغور ګرځیدلي ول، چې کله به تکاوي ته ورغلل ښځو او ماشومانو به بیا پوښتنې پیل کړې:

ـ دا دتاسې ملګرو ملتو خو هیڅ ونه کړل.

کله کله به دباندې ورپسې راووتل وبه یې پوښتل:

ـ دا ملګري ملتونه پسې څه شول؟

اوس بـه نـو ښـځو هـم د رهبرانـو ترڅنـګ ملګـرو ملتونـو تـه ښـیرې کولې:

ـ خدای دې دا ملګري ملتونـه ځـوانیمرګ کـړي، دوی هـم څه نـه ورتـه وایي، دا څه حال دی؟

خـو د ماشـومانو او ښـځو ښـیرې او سوې نـارې بـه د ډزو پـه آواز کـې ورکې شوې.

هغـه ورځ جګـړه ترپخـوا سـخته شـوې وه، بـس لکـه سـخته زلزلـه چـې وي، غرهار و، دانه معلومیده چې ګولۍ له کومې خوا ویشتل کیږي.

لـه دوړو او لـوګیو معلومیـدل چې شا وخوا توغندي لګیږي، هسې د تـالندې پـه خیرغـرهـار و، چـې دا سړي نـه شـوای تشـخیص کـولای چـې

له کومې خوا راځي. د توغندي یوه ګولۍ د کور په دیواله ولګیده، شاوخوا تورو لوګیو ونیوله. چې دوړې کیناستلې ملوك او هیواد راووتل ګومړي څه یې چې ولیدل تلوسه وه چې د تڼاوي په دروازه کې په وینو کې پرته وه.

ملوك د واره په غیږ کې را واخیستله.

ـ خوږې، خوږې!

د توغندي بله ګولۍ د انګړ په منځ کې ولګیدله، هیواد له تلوسې سره یوځای ځان تکاوي ته واچاوو مخ او جامې یې په وینو سرې وې.

شمروزې د سر وینښتان شکول، ښځو او ماشومانو ژړل.

تلوسه بې روحه د هیواد په غیږ کې پرته وه.

کلاخان د تلوسې پښه او نس په ټیکري وتړل، خو وینې لا روانې وې.

هیواد همداغسې تلوسه ښکلوله.

کلاخان یې ترپښه بله څیره هم وروتړله په تنده یې لاس کیښود دا نورو ته یې مخ وروااړاوو:

ـ ساه پکې چلیږي، که خدای کول جوړیږي.

شمروزې تلوسه په غیږ کې واخیسته.

تلوسې سترګې پرانیستلې:

ـ لا لا!

ټول خوشحاله شول، ژړا ودریده.

هیواد په غیږ کې واخیستله تلوسې سترګې پټې کړې، ملوك یې په خوله کې اوبه ورڅڅولې، تلوسې بیا سترګې پرانیستلې هیواد ته یې وکتل:

ـ لالا بیا نه نه دردر درځمه ، ما ما مه مه وهه.

بیا نه درځمه . ب .. ب ... بیا .. ب ب نه ..

هیواد په ډک ستوني وویل:

ـ خوره کې چې پورته راشې ظالمان دې داسې په راکټ وولي

او له دې سره په ژړا شو، په تکاوي کې د ناستوکسانو د ژړا آواز هم ورسره لوړ شو.

اوس نو ملوك او کلاخان هم خپلو سترګو ته د سمالونه نیولي ول، لکه چې ټول پوه شوي وي چې د تلوسې وروستۍ سلګۍ دي

تکاوي چیغو او ژړاوو په سر واخیسته.

ټول د تلوسې د بې ساه جسد په شاوخوا راټول ول

مړی یې په ټیکري کې ونغښت.

په هغه شپه هیچا ډوډۍ ونه خوړله، ماشومان هم لا وختي ویده شول، اوس نو د الوتکو او توپونو له غرهار سره ټول عادي شوي ول.

دوه شپې همداسې تیرې شوې ددریمې شپې په سپیده چاود یې د انګړ په کونج کې ځمکه وخرله او مړی یې خاورو ته وسپاره.

# درې دیرشم څپرکی

ویل کیدل چې جنګي ډلې له کابل څخه د بهرنیانو د وتلو لپاره په یوه ورځ اوربند سره سلا شوې دي، دا ورځ د کابل په خلکو د اختر ورځ وه.

د ښار په سرکونو په کډو بار کراچۍ روانې وې، له کابله په وتلو لارو کې په کډو بار موټرونه کتار ول، تا به ویل چې ټول ښار کډه بارکړې ده، لارې هم له ښځو او ماشومانو ډکې وې، ټول ښار په منډو و، د ټېپکوالو موټرونه هم په کالیو بار ول، معلومه نه وه، چې له کومه راځي او چیرې ځي، د ښار په واټونو کې ولاړ وسله وال کسان هم بې برخې نه ول، دوی به چې په کډو کې کوم شې خوښ و، د بیل او د پیرودلو د سندونو د نه درلودلو په بهانه به یې له موټر او یا کراچۍ نه راکوز کړل، ځکه خو په هره پوسته کې ډول ډول یخچالونه، تلویزیونونه، رادیوکستونه او الماری لیدل کیدلې، چې له خلکو څخه ضبط شوي ول.

په خوشحال مینه کې هم ځوك نه و پاتې لا په سپیدو کډې بار شوي وې. ملوك او كلاخان هم دوه کراچۍ کرایه کړې.

خپل ضروري کالي یې پکې بارکړل، ښه شیبه په حویلۍ کې د تلوسې قبر ته ودریدل، کلاخان له دروازې څخه ځوځله راغږ کړ:

ـ ژر راځئ ژر راځئ په دې خلکو باور مه کوئ، هسې نه چې بیا سره ښکر په ښکر شي.

خو ملوك او نور ټول د انګړ په كونج كې د خاورو د كوچنۍ غونډۍ شاوخوا چوپ ولاړ ول، لكه چې زړه يې نه و ماشومه تلوسه يې وازې يريږدي، د ورمې په مخ اوښكې روانې وې خو د ژړا غږ يې نه اوريدل كيده، شمروزه د قبر ترڅنګ ناسته وه، بس هسې يې قبر ته كتل، لكه چې اوښكې يې وچې شوې وي يا نه غواړي خپله ماشومه لور پخپل زړه كې د خواشنې له هغه ستر توفان نه خبره كړي، چې ددې د زړه ستنې يې له بيخه ايستلې وې، كلاخان هم لكه چې پخپله مخكينۍ خبره پښيمانه وي، ددروازې خواته غلى ودريده.

د كور مخې ته دواړه كراچۍ بار ولاړې وې.

سپين ږيري جوالي چې دا حالت وليد، انګړ ته راننووت د ملوك ترڅنګ ودريده له يوه اسويلي وروسته يې وويل:

ـ تاسې له دنيا نه ناخبره ياست، ته يو وار ووزه وګوره چې په ښار كې څه حال دى، بسته بسته كورنۍ تباه شوې تاسې لا شكر نه كوئ.

سپين ږيري هيواد ته مخ وروا ړاو پسې زياته يې كړه:

ـ دا پرون پرون، يوه نفر زما كراچۍ كرايه كړه مور يې رنځوره وه چې په كراچۍ كې يې امن ځاى ته ورسوي، خو ترمور دمخه راكټ كورته ورورسيده، ټوله كورنۍ تباه شوه، نور د ورلو لپاره څه نه و پاتې.

سپين ږيري پرله پسې خبرې كولې:

ـ په اور بند مه غلطيږئ، اوربند خو انسانان كوي، هسې نه چې اوس يې بيا شروع كړي او خداى مه كړه ټول دلته تباه شو.

د سپين ږيري نصيحت په دوى اغيزه وكړه، يو يو د دروازې په لوري روان شول، له حركت سره سم د دوى ژړا هم پيل شوه، تر خيرخانې پورې يې ژړل.

☆ ☆ ☆

د سيد الناصري د ليسې ټول ټولګي په مهاجرو ډك ول.

د جدي د مياشتې وروستۍ شپې ورځې وې، ژمي و، خو واوره نه وه، لکه چې د سربو باران په واوره زورور شوی وي، واوره ونه اوريده هغه ورځ هم لمرينه وه، لمرو، خو لمر داسې معلوميده لکه ترسهاره بل شوی څراغ چې تيل يې په خلاصيدو وي نه يې تودوخه لرله، نه هم رڼايي، بس د کفن په شان سپينه رڼا وه.

په هر ټولګي کې پنځو پنځو او په ځينو کې شپږو او اوو کورنيو اړولي ول، دوی د ښوونځي په دهليز کې يوه کونج ته پرده جوړه کړه او د پردې شاته دواړو کورنيو خپل راوړل شوي کالي هوار کړل.

په لږ وخت کې د ښوونځي دهليز هم ډك شو او نور دباندې په انګړ کې پاتې شول.

يو غمجن د بل غمجن په ليدو خوشحاله کيږي، دلته داسې خلك سره را غونډ شوي ول، چې له هريو به دې پوښتنه کوله، غم لړلې خبرې به دې اوريدې.

- دوه زامن مې ورك دي.
- ورور مې شهيد شو.
- په کور مې راکټ ولګيد بس زه او دا يوه لور مې ژوندي پاتې شوو.
- خاوند مې د جنګ په اوله ورځ له کوره وتلی بيانه دی راغلی.
- لور مې ورکه ده.

همدا يوه ورځ وه چې بايد ټول ضروري کارونه پکې شوي وای، ملوك او هيواد د کور د پاتې کاليو د راوړلو لپاره بيا خوشحال مينې ته روان شول، ملوك په ټولو منلې وه، چې امن سميې ته د کور د ليږدولو په سبا به د خمارې د ليدو لپاره کلي ته ځي.

له باغ بالا تير شول.

د اسمايي او دارالامان غرونو يو په بل د توپونو ډزې کولې خو دا ډزې داسې نه وې لکه چې جګړه وي، خلکو هسې ساعت تيرى باله، اخير ټوپکوال چې دا دوه مياشتې يې له ماشې ګوته هم نه وه ايسته کړې، نن له سهاره تر لوړمازديګره ارام ناست واى؟

ښاريان پوهيدل چې په جنګي ډلو به نن بې جګړې ورځ ځومره سخته تيره شوې وي، نو يونيم ډز ښاريانو د جنګي ډلو طبعي حق باله.

خو د دوو غرونو دا جګړه ايزه لوبه سوکه سوکه په لويه جګړه بدله شوه، له غرونو لاندې پوستو او پاټکونو هم ډزې پيل کړې، موټرونه، زرهپوشونه او ټانکونه سرکونوته راووتل او په رانه ميدان بيا جګړه پيل شوه.

ملوك او هيواد هم په لومړي سرکې خال خال ډزې ټوکې بللې.

ـ ډزونه اوس ددوى عادت ګرځيدلي دي، هسې ډزونه کوي.

له بلې خوا يې لا نيمايي شيان په کورکې پاتې ول.

ملوك زړه نازړه و، خو هيواد نه غوښتل چې تش لاس بيرته راوګرځي، په تيره چې د مور دا خبره به ورياده شوه چې د راتګ په وخت کې يې په ژړا کې ورته ويلي و:

ـ زويه له هغې خوا د خوږې د قبر خاوره (خورده) هم درسره راوړه که مې لږ زړه تر صبر شو.

اوس نو د تلوسې له قبره د خاورې راوړل د هيواد فرض ګرځيدلي ول، چې هرومرو يې بايد راوړى واى.

خوشحال مينه د جګړې ډګر ګرځيدلى وه، خوشحال مينې، پولي تخنيك او انترکانتيننتل هوټل ويشتل، پولي تخنيك او غره هم خوشحال مينه تر اورلاندې نيولې وه.

د پولي تخنيك خواته د سرك له سره ټانكونو هم خوشحال مينه په نبنه كړې وه.

له هرې خوا سرې مرمۍ باديدلې، د پولي تخنيك په دروازه كې ولاړ د ټانك دهشكې د سيلو خواته په سرك تيريدونكي كسان چې يوې بلې خواته يې منډې وهلې په نښه كړ.

ملوك او هيواد ليدل چې په يوه شيبه كې ټول په ځمكه ولويدل، دوى هم د يوه ديوال شاته ودريدل، يو سړى چې ماشوم يې په غيږ كې و، د سرك له منځه راولاړ شو او د ديوال په لوري يې منډه واخيسته خو دهشكې د وړاندې تګ مجال ورنكړ ضربه ګولۍ يې مخې او شاته ولګيدې، سړى په ځمكه پريووت.

هيواد چيغه كړه:

ـ اخ ولګيده.

خو ژر معلومه شوه چې ژوندى دى ځكه چې كله دهشكې دده شاته كورونه په نښه كړل، ده سر راپورته كړ، اوس نو دوى ته نږدې ول، خو دوى نشواى كولاى ورسره مرسته وكړي.

ـ دې خوا راشه، په يوه منډه ځان را رسولاى شې.

خو د مرميو په باران كې ددوى دا چيغې نه اوريدل كيدې، سړي شاوخوا وځارله، ماشوم يې په غيږ كې سم كړ، ددوى په لوري يې منډه راواخيسته، لا څو ګامه نه وو تللى چې ماشوم ترې ولويده، ددهشكې د مرميو ضربې يې يومټ وړى و، ورسره سم له ټانګ نه هم لمبې پورته شوې معلومه نه شوه چې له كومې خوا ولګيده.

ترڅنګ ولاړ زرهپوش هم شاته وتښتيده.

ماشوم په خاپوړو ځان ورساوو.

مرمۍ هماغسې باديدلې هيواد ددوى په خوا ورمنډه كړه، ماشوم د

پلار په سینه سر ایښی و، او په چیغو چیغو یې ژړل، هیواد سرې ته ونه کتل په بیړه یې ماشوم راواخیست، دیوالـه تـه لا نـه و را رسیدلی چې پـه ډزو او لوګیو کې پټ شو، چې لږ رڼاشوه، هیواد او ماشوم دواړه د سرك ترڅنګ په ویاله کې پراته ول.

ملوك لاس ورکړ، خو هیواد نشوای کولای پـه پښـو و دریـږي د توغندي پارچو یې دواړه پښې ټپي کړې وې.

ملوك لومړی ماشوم د دیواله خواته ورساوو، بیا یې هیواد په شا کړ او د دیوال ترڅنګ یې کیناوو، د ماشوم یو لاس نه و.

ملوك لومړی خپل څنګل چې وینې ترې بهیدې پخپـل دسمال وتـاړه بیا یې د هیواد او ماشوم د ټپونو په تړلو پیل وکړ.

جګړه پـه مخ روانـه وه، ددوی سیمه یوې بلې ډلې ونیوله د جګړې لومړی کرښه لا دمخه ماته شوې وه.

یو فوځي موټر په بیړه ددوی خواته را روان و، د موټر مخې ته په شنه رخت لیکل شوي و «فتح الفتوح مبارك باد» چې دوی تـه را ورسید، دوه کسه ترې راکوز شول، ملوك یې مخې ته ورمنډه کړه:

ـ دا زخمیان مړه کیږي، د خدای لپاره دا شفاخانې ته ورسوئ.

وسله وال چې پلنګي دریشي یې اغوستې وه، اوږدو څڼو یې نیمایي مخ پوښلی و، ښکته پورته ورته وکتل دا بل ته یې مخ ورواړاوو:

ـ پخپله دی دی.

دواړو سره وخندل، ملوك ددوی په خبرو پوه نه شو.

څڼور ځوان مخابره چالان کړه:

ـ الو الو خراسان درفش، خراسان، درفش اطمینان.

د مخابرې له بغس سره یو ځای غږ پورته شو:

ـ الو الو الو خون ـ خراسان، اورم.

ـ درفش چیرته دی؟

له هغې خوا ځواب ورکړل شو:

ـ درفش د دښمن اسیر دی وایه، څه وای‌ې خراسان!

ـ الو الو مرکزته ووایه ۱۳ کسه اسیران نه نه ۱۴ کسه اسیران مو دادی درولیږل اطمینان!

له دې سره یې د ملوك لاسونه شاته وتړل، لوڅ موټر ته یې په ټیله ټیله پورته کړ، دواړه ټپیان یې یوبل موټر ته چې نوی را ورسیده واچول د موټر مخه په سرك پرتو مړو بنده کړی وه، له موټر څخه درې کسه کوز شول، دوه مړي یې چې د سرك په منځ پراته ول، د سرك غاړې ته کش کړل، یوبل چې ښایې ځان یې په مړینې اچولی و، سر راجګ کړ، وسله والو چې ولید ټپي دی، دوهم موټرته یې واچاوو.

نور مړي یې چې د سرك یوې بلې غاړې ته پراته ول، هماغسې پریښودل ښایې ویل به یې چې مړی دې خپل غم پخپله وخوري.

# څلورديرشم څپركى

دا يو عجيب ځاى و ، زندان نه و ، خوكوټې يې داسې جوړې شوې وې لكه چې ديوې نړيوالې جګړې د اسيرانو لپاره زندان جوړشوى وي، هيڅوا دا فكر نه شواى كولاى چې په كابل كې دې د پلچرخي او دهمزنګ نه پرته داسې بل زندان هم وي، نږدې په ټولو كوټوكې د خښتو پرځاى ډبرې كارشوې وې، كوټې د سرتيرو د كاغوشونو په څير لويې لويې وې، دسړې له قد نه لوړې كوچنۍ كوچنۍ كړكۍ پكې پرى شوې وې، چې كلكې فلزي پنجرې نوې پكې لګيدلې وې.

د انګړ ديوالونه هم په ډبرو جوړ شوي ول، ويل كيدل چې ددې ځاى واكمن نور واړه زندانونه هم لري، خودا زندان د هغو ښځو او نارينه و زندان دى چې په جزاوو محكوم شوي وي، دمخه به دلته يوازې هغه زندانيان راوستل كيدل چې د جزا د تطبيق وړ به و . او زياتره جزاګانې به د واكمن په مخ كې همدلته تطبيق كيدلې. خو په وروستيو جګړو كې دغه نظم ګډ وډ شوى و . اوس نو دلته هر ډول زندانيان راوستل شوي ول، ټول سره ګډ شوي ول، يوازې د ښځو او نارينه وو كوټې بيلې وې. ملوك يې هم په ترلو سترګو دلته راوستى و . د سيلو خواته يې چې دده سترګې پرې ترلې وې بيايې نه وې خلاصې كړې، دى نه پوهيده چې چيرې دى.

شپه يې د نورو زندانيانو په شان په وينښه تيره كړې وه. بيګا شپه تر

نـورو شـپو ارامـه وه، پرلـه پسـې جګـړې نـه وې یـوازې الوتکـو کلـه کلـه بمباري کوله او د شپې په پیل کې هم د غره هاخوا د خوشحالي هوايي ډزې وشوې نور داسې جګړه نه وه، چې د نورو شپو په څير دې يې خلك خوب ته نه وای پرې ايښې، خو ددوی د بې خوبي سبب د زندان په دې لويه کوټه کې د ځای نشتوالی و، چې د پښې غځولو ځای پکې نه و، که به څوك ويده هم شو بيژر ته به ژر راويښ شو.

دا يوازينی ځای و، چې خلك يې د جګړې په بنديدو خواشيني ول.

يوتن چې سپينه جالۍ لرونکې خولۍ يې په سر وه په خواشينۍ سره وويل:

ـ زو مړ کې چې دا بيا څه بلا ووهل. دا جنګ يې ولې ودراوو؟

ـ زه هم همدې ته چورت وړی يم چې دا ولې جګړه نه کوي.

د کوټې په کونج کې يو بـل سپين ږيري چې دوی ورتـه ډاکټرصاحب وايه ددوی دډاډ لپاره وويـل:

ـ چرت مـه پـې خرابوئ، ددې خلکو بې لـه جنګـه ګـوزاره نـه کيـږي. ځانونه به بل جنګ ته تياروي.

يوه بل يې خبره تائيد کړه:

ـ ډاکټرصاحب ښه وايي اوس به ووينئ چې بيا اورونه بل کړي.

د ځنګ سړي ته يې مخ ورواړاوو:

ـ دغه سې نه ده حاجی صاحب؟

ـ زه وايم چـې دې ملګـرو ملتونـو کـوم اوربند موربند نـه وي اعـلان کړی.

ډاکټر په بې اعتنايي سره وويـل:

ـ هی هی سر دې سوی بوی يې نـه دې درغلی. د ملګـرو ملتـو کيسـه مفته ده. دا په ملګرو ملتو څه پوهيږي.

ملوك چې تراوسه يې حيران حيران د يوه بل خولې ته کتل په خبرو کې ځان ورګډ کړ:

ـ چې جنګ نښته شکر وباسئ، تاسې ولې پې خپه یاست؟ دا خوښه...

يوه بل يې خبره پريکړه:

ـ ځوانه ته له دنيا ناخبره يې.

ملوك په غوسه شو له دنيا تاسې ناخبره ياست، چې په تياره کوټه کې پراته ياست، ټول کابل په اور کې سوځي، ټول خلك تباه شول، څوك د ساه ايستلو توان نه لري.

سترګې يې له اوښکو را ډکې شوې:

ـ خدايزده چې د ما د خور به اوس څه حال وي، مشر زوی يې وويشتل شو، خدای خبر اوس به مړ وي که ژوندی، دوی په مکتب کې پراته دي.

يوبل بندي وويل

ـ زموږ د هريوه ډك ډك کورونه پاتې دي، د چا په کور راکټ لګيدلی و، دچا نيمايي کورنۍ له منځه تللې د چا ټوله ، او ډير خو هيڅ ترې خبر نه دي.

د څنګ سړي ته يې مخ ورواړاوو:

ـ که څنګه انجنيرصاحب همداسې نه ده؟

انجنير وويل

ـ موږ له خپلو کورونو او اولادونو لاسونه مينځلي دي، په دې جنګو کې والله که يو هم روغ پاتې وي، د ځان غم نيولي يو د ځان؟

ملوك ورته وويل:

ـ نوتردې به نور څه دربانديې راځي، بنديان ياست، يونفر به راشي ټول به په ګولۍ وولي.

یوبل چې د نورو په خلاف به یې د هرې خبرې سره خندل د ملوك په اوږه لاس کیښود:

ـ وروره اوس داسې وخت راغلی که کومه ګولۍ راشي له تا چپه شي ستا په ورور ولګیږي داسې فکر وکړه چې په دیواله ولګیده.

له دې سره یې په لوړ آواز وخندل.

انجنیر ملوك ته را نږدې شو ورته وېې ویل:

ـ تا وویل چې په ګولۍ به مو وولي، موږ وایو کاشکې دومره څوك پیدا شي چې موږ وولي، که موږ څوك په ګولۍ وولي جنت به وګټي.

ملوك وویل:

ـ نو څه به وکړي؟

لومړنی کس وویل:

ـ زه چې درته وایم ته نا خبره یې نه یې منې، دلته چې جنګ نه وي هغه څه به وويني چې نه دې لیدلي نه اوریدلي دي.

یوبل وویل:

ـ د جنګ ګټه داده چې یو خو دا سړي خواره پکې اخته وي موږ ته یې را پام نه وي، بل خدای مهربانه دی ګوندې یا کوم بم او راکټ په موږ ولګیږي یا دا ځای بل ګروپ ونیسي.

ډاکټر وویل

ـ او زموږ د کورنیو دې خدای مل شي، یابه له دې اوره وتلي وي یا به په دې اورکې سوځیدلي وي.

ډاکټر یو سپین ږیري ته ګوته ونیوله ویې ویل:

ـ ددغه حاجي صاحب ټوله دارایي ولاړه، زامنو یې څه چې لرل په ده پسې یې ولګولې، اوس فرید دیوانه ترې پنځه زره لکه غوښتې خو دده د زامنو پته ونه لګیده، دی یې اوس د مړو د نخا په لست کې نیولی دی.

ـ د مړي نښا څه شی وي؟
ـ پخپله به يې ووينې، زه يې نه شم بيانولای ـ وربه شي خبر به شې.
ډاکټر له ځايه راولاړ شو، د دربچو په لوري ولاړ ملوك ته يې مخ راواړاوو.
ـ راځه چې ددوی د دنيا يوه ځنډه درته وښايم.
دواړه د ګوتو په سرونو په کړکيو کې ودريدل. ډاکټر په خبرو راغی:
ـ دغه د حويلۍ په منځ کې د قير په څير سوځيدلي ربړونه وينې، دلته يې د موټر د ټايرونو په منځ کې يو سړی ودراوو. اور يې ورواچاوو.
ملوك يو ازې سر ښوراوو.
ـ هغه بوجۍ چې د هغې کوټې په لارګۍ کې ولاړه ده. له تيو ډکه ده.
ـ توبه مې دي وي خدايه په دې څه کوي؟
ـ نه پوهيږم خلك وايي چې ددې ځای واکمن له تيو سره هم مينه لري هم يو ډول عقده، بس د اسيرو ښځو تيونه پرېکوي. نور نه پوهيږم چې څه پې کوي.
يوبل بندي چې د کړکۍ بيخ ته ناست و وويل:
ـ موږ پخپله وليدلې چې له ښځو يې تيونه غوځ کړل او بيا يې مړې کړې.
په ملوك لړزه ګډه وه. لاسونه او پښې يې رپيدلې.
ډاکټر بيا وويل:
ـ که ژوندی وې د هغو لرګيو په احاطه کې به د مړي نښا پخپله ووينې.
ورك يې که خدای دې نه راوينې.
ډاکټر په بل لاس د کړکۍ پنجره ونيوله پسې زياته يې کړه
ـ په هغه مخامخ ديوال يې پرون يو نفر راځړولی و. په سر او لاسونو يې ميخونه ووهل.

ملوك پوښتنه وکړه:

ـ هغه په کونج کې دا توره خونه د څه شي ده؟

ـ هو هغه کومه جهنمي زیر زمیني ده، څوك چې په دغه توره دروازه ننوتي، بیا نه دي راوتلي، وايي چې بله دروازه یې د هغه وړاندې غره په بیخ کې راوتلې ده. خلك وايي چې هلته ویني ډنډ پکې ولاړې دي.

ملوك ځای په ځای کیناست خپل سر یې په لاسونو کې ونیو.

هغه ورځ په ارامه تیره شوه. جبهه یې جګړه نه وه، یوازې له لرې لرې د درندو وسلو ډزې اوریدل کیدې. په زندان کې هم چوپتیا خوره وه یوازې غرمه مهال څوکسه اسیران راوستل شول او مخامخ یې زیر زمیني ته کوزکړل، ورپسې یې هم د ښځو له کوټو څخه څو میرمنې له زندان څخه وایستلې.

مازدیگر ناوخته یې د یوې بلې کوټې زندانیان هم ددوی کوټې ته راوستل، ویل کیدل چې ۳۵ ښځې یې نوې راوستې دي او په نورو کوټو کې نه ځاییږي ځکه یې د هغې بلې کوټې زندانیان دغې کوټې ته راوستل.

ملوك په لومړي نظر د اسیرانو په ډله کې قوماندان هاشم وپیژاند.

د روغبړ په وخت کې ملوك له غوصې مخ بلې خواته واړاوو.

هاشم پرې شکمن شو. چې پخپل ځای کیناست ملوك یې وپیژاند.

ـ داته یې؟

ـ خدای چې څوك نه وي وژلې، بې وسه بندګان یې نشي وژلای.

هاشم په غوصه وویل

ـ دتا لکه د پشي اووه ساوې دي. شپږ دې ختلې دي. اوومه دې دې ځای ته پاتې ده.

نورو بندیانو چې تراوسه یې په حیرانۍ سره ددوی خبرو ته غوږ نیولې و. هاشم د کوټې یوه سر او ملوك بل سر ته بوتلل.

په تګ تګ کې ملوك په لوړ آواز وویل:

ـ خدای دې ماوتا دواړه له دې ځایه ژوندي وباسي، بیابه سره ګورو.

هاشم له غوصې وخندل:

ـ وه وه مچ به څه وکړي، پیاله به دې درمرداره کړي، ته څه وایې؟

بیایې لږ په لوړ غږ پسې زیاته کړه:

ـ زه به وزم، خو دتا به دا ځای وي.

نورو بندیانو په دواړو منت وکړ:

ـ وشرمیږئ د مرګ په وخت کې هم کینې له زړونو نه باسئ.

په کوټه کې نیمایي بندیان د یوه او نور دبل شاوخوا را ټول شول، او ددوی دواړو خبرې یې واوریدلې.



ملوك نه پوهیده داځای چې سهار یې ترلې سترګې راوستی و، کوم ځای دی. خو کله یې چې د ډاکټر سترګې خلاصې کړې. له ماتې کړکۍ یې د باندې وکتل چیغه یې کړه:

ـ اوه دا خو زموږ مکتب دی.

بیایې دا نورو ته خپلې تیرې خاطرې یو په بل پسې وویلې. خو چایې خبرو ته غوږ نه و نیولی. ډاکټر د کړکۍ خواته ودریده:

ـ دولس کاله مې دلته درس ویلی دی. لکه خپل کور داسې مې دی. وی دا خو ټول سوځیدلی دی.

ډاکټر داسې خبرې کولې لکه چې دلته پخپله د سیل لپاره راغلی وي. خو وسله وال نورو خبرو ته پرې نښود. په ولیو کې یې د کلاشینکوف په قنداغ وواهه ویې ویل:

ـ چوپ شه. با د پلار کوردې دی. اوس به تاهم یوځای ورسره وسوځوو.

د ډاکټر او څو نورو لاسونه یې شاته وتړل بل ټوپکوال ته یې وویل:
- دوی سره کانتینر ته بوځه.
ملوك چې لا لاسونه یې نه و ورتړلي، د دروازې خواته ولاړ و له ټوپکوال څخه اوبه وغوښتې، توپکوال په تمسخر وخندل
- تلوار مه کوه، اوس ټولو ته اوبه ورکوم.
ملوك په زاریو وویل:
- ډیر تږی یم، آن د شپې لا تندې اخیستی وم.
ټوپکوال وویل:
- وارخطا کیږه مه، داسې اوبه به درکړم چې ټول عمر دې نه وي څښلې.
بل ټوپکوال ته یې مخ واړاوو وې خندل:
- اوبه لري؟
- هو لرم یې، خو ګیلاس نشته.
ټوپکوال د دروازې مخې ته په کونج کې د اوسپنو کبارړ ته اشاره وکړه ویې ویل:
- دلته به کوم ډولی څه شی وي، څه په طلایي ګیلاس کې خو به اوبه نه ورکوی. بل ټوپکوال د اوسپنو له انبار څخه اوسپنیز قوطی راواخیست، د دیوال شاته ولاړ، څو شیبې وروسته یې د اوبو قوطی د ملوك مخ ته ونیو.
- ها واخله، اوبه تازه نه دي، نورو ته یې راسًا له نل څخه ورکوو.
ټوپکوال مخصوصه خندا وکړه.
ملوك یوځل ټوپك وال او بیا قوطي ته وکتل، چې خولې ته یې نږدې کړ، زړه یې راهسك شو، قوطې یې بیرته ټوپکوال ته ونیو، ټوپکوال په غوصه شو:

ـ زه لکه چې ستا مزدوریم، اوس به یې حتماً ښنبې.

دا نورو ته یې سترګه ووهله پسې زیاته یې کړه:

ـ دا خو څه خوشې اوبه نه دي.

او په ملوك یې کلاشینکوف پورته کړ، ملوك سترګې پټې کړې. د ژیړو اوبو قوطی یې خولې ته یوړ په شونډو یې بدې ولګیدې. یو غړپ یې وکړ، خو ترستوني یې تیر نه کړ. ټوپکوال وغوریده.

ـ وڅښه د سپي زو.

ملوك مخکنی غړپ هم توکړ، ژړغونې یې وویل.

ـ دا اوبه نه دي، دا خو م م میت ....

ټوپکوال د نورو خبرو مجال ورنه کړ. قوطی یې ترې واخیست بل ته یې ورکړ. ملوك یې په پوزه په سوك ووهه له پوزې یې وینو داره وکړه. ټوپکوال په خیټه کې په لغته ووهه، کلاشنکوف یې پرې پورته کړ خو ویې نه واهه. بیرته یې له ځایه را ولاړکړ. قوطی یې ورته ونیو په بل لاس یې د ملوك د سر ویښتان ټینګ ونیول. قوطي یې په خوله کې ورتش کړ. ملوك ځای په ځای کیناست له خولې یې ژیړې اوبه روانې وې.

دوو ټوپکوالو د پاتې کسانو لاسونه هم وتړل. دباندې په لوی میدان کې چې یو وخت کې د ښوونځي سپورتي میدان و. ډیر کسان راغونډ شوي ول. د میدان په منځ کې یو جسد چې سربې نه و. پروت وو. د ملوك ترخنګ سپین ږیري سړي مړي ته ګوته ونیوله.

ـ د مړي نخایې دا وي

د میدان په بر سر کې یو له ونې ټیټ. چاغ سړي چې څو کره ږیره یې ګرګوتي شوې وه ولاړو. همده خلکو ته جزاګانې ټاکلې. ډاکټر او لس دوولس کسان یې د کانتینر په لوري بوتلل. تر کانتینر

لاندې لا دمخــه د تیلو سر خلاصي بیلرونه ایښودل شوي ول. په دوی پسې یې دکانتینر دروازه وتړله اوتـرې لانـدې یـې اور بل کـړ. لـه لرې د ډزو آواز راتـه. ښايي لـه دې خـاطره دوی هم زندانیانو تـه پـه جزا ورکولو کې بیړه کوله. زندانیان یې په څو ډلو وویشل. ښځو ژړل. خو نور غلی ولاړ ول.

یوه ډله یې چې ټول پـه یوه پـړي تـړل شوي ول. لـه ښوونځي دباندې بوتلل د قوماندان پـه اشاره پـه میدان کې د مړي تنه لـه هغـه ځايـه یـوړل شوه. پـه ځای یې یـو پـه عمـر پوخ سړی چې ږیره یې نوې رسیدلې وه. او ټوپکوال په ملنډو ډګروال صاحب باله او یوه ځوانه میرمن راوستل شول. مخامخ یې دوه چاغ کسـان چړې پـه لاس ولاړول. هلتـه پـه بـل کـونج کـې څو...

ملوك حیران و ، اول کوم یو ورسوي. ورسره میرمنې پټ پټ ژړل. په مخ یې اوښکو لارې جوړې کړې وې نور یې د تللوسیك نه درلود ، د باغ وحش (ژړبن) له دیوال سره تسیا وسیا کیناسته.

ملوك ورسره بل ملګري ته وکتل. دهغه ټپي لاس تړلی و . خو وینې ترې روانې وې. د ملا د ټپونو وینه یې وچه شوې وه. کمیس یې له زخمونو سره سرېښ شوی و.

دهمزنګ د غرمې په جګړه کې بلې ډلې نیولی و. همدغې ډلې په هغه ښوونځي هم یرغل کړی و. هلته ګډوډي جوړه شوه. د زندان مسؤولینو د زندانیانو د یوځای وژلو امر ورکړی و. له هرې خوا ډزې وې. ملوك او څلورو نورو کسانو د شیرشاه مینې د ورانو کورونو له لارې ځانونه تردې ځایه را رسولي ول.

دوه کسان چې یو یې په پښه زخمي و، همدلته ترې جلاشول او د چهلستون په لور ولاړل.

دلته په سرك موټر نه معلومیدل. یوځل یو ډاټسن موټر راغی په بیړه تیرشو. دوی بیا روان شول. ښځه ګوډه ګوډه تله. په پښو یې وینې راماتې وې. ملوك خپل رومال ورکړ، چې زخم پرې وتړي. خو میرمنې ویل چې زخمي نه ده. درې واړه په مټ کې یو دبل په مرسته تر ارتل پله ورسیدل. د صکوکو د مطبعې د دیوال څنګ ته کیناستل. دیوال په مرمیو لګیدلی و. میرمن په شنه رنګ لیکلی شعار په زحمت ولوست. «ای خواهر! به تو از فاطمه این ګونه خطاب است اولین زینت زن حفظ حجاب است.»

میرمنې پړونې په ځان سم کړ د کمیس څیرې شوې برخې یې پټې کړې. پایڅې یې نورې هم ښکته کش کړې. خو وینې یې پټې نه کړای شوې

اوس نو ملوك هم نشوای تللای. پنځه شپې یې خوب نه و کړې په لاره یې څوځایه ژیړې اوبه قی کړې. له سهاره لا بې حاله و. خو تراوسه یې د ځان د خلاصون لپاره ځان کلك کړی و

الوتکو د تلویزیون په غره بمونه واچول. ورسره په ښارکې له هرې خوا ډزې شروع شوې. دوی په یوه ړنګه کوټه ننوتل. ښه ځنډ له دیوالو سره کیناستل د الوتکو غرهار او د توپونو ډزو غوږونه کڼول. میرمنې ژړل او په زګیروي کې یې خپله لور چې په زړو مکرویانو کې په کورکې ترې پاتې وه یادوله.

ملوك زلمی وپوښت د هغه له خبرو پوه شو چې د طب پوهنځي محصل و . کور یې په خواجه بغرا کې و . او د پوهنځي له درس وروسته یې په سره مینه کې په یوه درملتون کې کارکاوو.

ځوان داهم ویل چې پلار یې په جنګ کې ورك شوی او د کور مشري ده ته ورله غاړې ده.

ملوك پرله پسې پوښتنې کولې

ـ پلار دې په کوم جنګ کې ورك شو ؟

ـ نه پوهیږم د پکتیا خواته ځوك وایې کتهواز ځوك وایې زرمت که څه نوم لري چې ولاړ بیایې مړی ژوندی موږ ونه لید

ملوك په خواشینی وویل

ـ اوف. څه کار یې کاو . څه نومیده؟

ـ پلار مې صاحب منصب و . بریالی نومیده

ـ بریالی؟

ـ هو ولې؟

ملوك په چرت کې شو . څه یې ونه ویل

اتل بیا وپوښت

ـ څنګه دې داسې پوښتنه وکړه. تاته یې څه پته شته؟

ملوك له ځایه را ولاړ شو . د دروازې خواته ولاړ. شاوخوا یې وڅارله په کوڅه کې هیڅوك نه تر سترګو کېدل. ډزې غلې شوې وې. له لرې د توپونو ډزې اوریدل کیدې. الوتکې نه وې. خو د غرو له سرونه د هوایي دفاع وسلو خال خال ډزې کولې

ملوك له دروازې را وګرځیده. د خبرې اړولو لپاره یې دا موقع ښه وګڼله ویې ویل

ـ جنګ نشته ځو ؟

یاسمین له ځایه را ولاړه شوه، خو اتل پرېښودونکی نه و. تقریبًا په زاریو یې ورته وویل:

ـ تاته حتمًا زما دپلار مړی او ژوندی معلوم دی، ولې نه راته وایې؟

د ملوك مخې ته ودریده پسې زیاته یې کړه:

ـ هډونه مې خبر دي، چې ژوندی نه دی خو تراوسه مې والله که یا خیرات پسې کړی وي یا سقات.

ملوك ورو وویل:

ـ راځه چې ځو اوس د ما او دتا مړی او ژوندی هم نه دي معلوم.

ـ نا، ما چې د پلار نوم واخیست، ته داسې بل رقم شوې.

یاسمین دباندې وتلې وه، ملوك هم پسې ووت. په دروازه کې یې یوازې دومره وویل:

ـ راځه ماته نه دی معلوم. بریالی زما یو بل خپلوان و ما ویل هغه یادوې.

دوی بیا د یوه دیوال ترڅنګ غلي غلي روان شول. له یوې کوڅې په کډه بار موټر راووت، دوی د سرك په منځ ورته ودریدل. موټر خیرخانې ته کډه رسوله. ملوك او بل سړی په ده افغانانو کې ترې کوز شول. د کور په خاوند او موټر یې ومنله چې یاسمین مکرویانو ته ورسوي.

ملوك او زخمي اتل ساه په ساه جمهوریت روغتون ته ورسیدل د روغتون د کړکیو ښیښې ماتې وې، یوه نیمه کړکۍ په پلاستیك پوښل شوې وه. شاوخوا هیڅوك نه ول. خو په روغتون کې څو کسه ډاکټران ول. زخمیان په خونو او دهلیزونو کې پراته ول. زخمیان ډیر ول. ملوك او اتل په دهلیز کې کیناستل. ملوك په زور د ډاکټرانو کوټې ته ننوت.

ډاکټر ملوك ته وویل:

ـ ته باید علی آباد ته تللی وای. ستا تکلیف عقلي اوعصبي دی.

ملوك په لوړ آواز وويل.

ـ عقل په تاسې کې نشته، مسلماني په تاسې کې نشته، سړی مري تاسې خاندئ.

ډاکټر څه ونه ويل داتل د زخمونو په مینځلو بوخت شو.

ملوك ځان او ډاکټرانو ته کنځاوې کولې، ډاکټر سر ونبوراوو. دا بل ډاکټر ته يې وويل:

ـ تکليف يې زيات دی.

ملوك هماغسې له ځانه سره غړومبيده د دهليزپه کونج کې په اوږده چوکۍ کيناست، کنځاوې يې د زخميانو په زګيروي کې ورکې شوې.

د ناروغانو له منځه پرې غږ وشو:

ـ ماما

ملوك په هغه لوري وکتل د زخميانوپه منځ کې يې هيواد وپيژاند.

ـ اوه خدايه هيواد يې.

په هيواد ورټيټ شو څو وار يې په مخ ښکُل کړ.

ـ شکر چې ته ژوندی يې

دهيواد له سترګو اوښکې روانې وې، په ژړا کې يې وويل:

ـ کاشکې ژوندی نه وای.

ـ ولې ولې؟

هيواد څه ونه ويل، اوښکې يې نه تم کيدې.

د ملوك پام شو چې دنګ او ښکلی هيواد تر تورې فوځي کمپلې لاندې څومره لنډ ښکاري، کمپله يې ترې ايسته کړه، د هيواد دواړه پښې نه وې، نور ځان يې په پلستر پوښل شوی و. د هيواد د نا اُميدي د ژړا آواز لوړ شو. ملوك پټه خوله ورته ولاړ و. هيواد اوښکې تويولې. ملوك بې حرکته ولاړ و.

# وروستۍ څپرکی

تیر منی د لاندو په وخت کې د کابل په لاره کلي ته ولاړم.

زما د لارې ملګري اجمل ډېره هیله لرله چې کابل یوځل ووینې ځکه خو د کابل په لاره راغلو. ما د کابل جګړې څه لیدلې وې او د نورو مې یې کیسې اوریدلې وې. نه مې غوښتل چې کابل ووینم. خو اجمل رند و. ویل به یې: «څو چې خپل د مینې کور. کابل ونه وینمه زړه مې قرار نه کوي.» ده په کابل کې ژوند کړی و. هلته یې زده کړې کړې وې او په کابل کې یې مینه کړې وه.

کله یې له کابله زړه صبریده. بس زه یې هم ورسره راروان کړم. په ټوله لاره یې د کابل خوږې او ترخې کیسې نه تمامیدې.

په کابل کې له پخوانو اندېوالانو او خپلوانو څخه څوك نه و پاتې که پاتې ول. موږ ته یې پته نه وه معلومه.

په پښتونستان هوټل کې مو یوه کوټه ونیوله.

زما کمزوري زړه د ویجاړ کابل د لیدلو توان نه درلود. ځکه خو مې د کابل په ښارکې له اجمل سره ملګرتیا ونه کړه.

اجمل مازدیګر ستړی ستومانه کوټې ته راغی. له سرو او پکې لویدلو سترګو یې پوه شوم چې څه پرې تیرشوي دي.

سهار یې چې د میوند واټ ویجاړې ماڼۍ لیدلې وې. هماغلته یې ضُعف کړی و. چا له کوم درملتون څخه درمل ورته راوړي ول.

له هغه ځایه په شیرشاه مینه کې د خپلې مینې کور ته تللی و پاتې ورځ یې د هغې د وران کور د خاورو په کوټ په ژړا تیره کړې وه.

ما ورته وویل

ـ ځنګه انشاء الله اوس خو به دې زړه صبرشوی وي. زیاتي خو به کلي ته ځو؟

ده له اسویلي سره راته وویل:

ـ زړه خو مې دی. چې دا اوس حرکت وکړو، خو ....

ماورته وویل

ـ خودې هم راته وو ایه.

ـ له تا یوه هیله لرم. ته به یې را سره منې.

ـ مهرباني وو ایه.

ده په زاریو وویل:

ـ بس چې سبا شیرشاه مینې ته راسره ولاړشې. زما د لیلما کور ووینې.

ـ هلته به څه وکړو، تاخو نن ولید لا زړه دې صبر نه دی. ماخودا حالت لیده ځکه نه درسره ګرځیدم.

ـ را سره لاړ شه که دې را سره ژړل نه. زما د هلیو هدیره خو به ووینې، زه به یې هم وروستی سلام وکړم.

سبا سهار وختي شیرشاه مینې ته ولاړو.

د اجمل اوښکې نه تم کیدې. د خاورو په ډیري ناست و. اوښکې یې تویولې

ما نه شوای کولای تسلي ورکړم. له خپلو اوښکو سره مې پرې ښود، زه د خاورو له ډیري راکوز شوم. د یوې وچې ویالې په غاړه کیناستم

اجمل په ژړا ژړا کې له خاورو خپل جیبونه ډکول. خواته یې ورغلم همداسې پټه خوله مې ترلاس ونیو. او راروان مې کړ.

په سلګو سلګو کې یې راته وویل:

یارغم به په تنها صورت زغممه دابې درد عالم به نه راخبرومه

په غوصې سره یې پسې زیاته کړه.

ـ ته ملامت نه یې، تا مینه نه ده کړې.

دده آواز پسې لوړیده، ښه و. چې هلته څوك نه و، كه نه حتمًا به یې فکر کړی و، چې زموږ دواړو جنګ دی.

ماځه نه ویل، پام مې شو چې له پوزې یې وینې روانې دي، خپل دسمال مې ورکړ، چې پوزې ته یې ونیسي، چې وینه یې بنده شي.

خوده بیرته دسمال راکړ.

ـ پریږده چې وینې ولاړې شي.

زما ټینګار دده انکار، نه یې غوښتل چې له پوزې څخه راروانې وینې یې ودریږي.

په جدیت یې راته وویل:

ـ کوښښ مه کوه، چې وینه مې ودریږي. دا هغه وینې دي، چې ماته مې خپله مینه او زما بې وفایي رایادوي، همدغو وینو ماته د مینې لار راښودلې وه.

ترلاس یې ونیوم، د خاورې دډیرې ترڅنګ یې کینولم.

په ټیټ آواز یې وویل:

ـ په هغه ورځ مې هم همداسې یو له یوه له پوزې وینو داره وکړه.

په هغه بله کوڅه کې زما د خور کور و. هلته ورتلم دلته چې را ورسیدم له پوزې مې وینې جارې شوې. ښایې دا ځای به و. چې زه او ته ناست یو. دلته یوه د اوبو بمبه وه، راغلم په بمبه مې مخ ومینځه، خو وینې د اوس په څیر نه دریدې.

اجمل پرله پسې خبرې کولې:

دا کور نه و، یوه ښکلې ماڼۍ وه، په ونوکې پټه وه، دلته شاوخوا په ګلونو پوښل شوې وه، دا بمبه یې د همدې ګلونو د اوبولو لپاره ایښې وه، په هغه ورځ مې ګلان پخپلو وینو اوبه کړل، بس ځنډ د بمبې له څنګه کیناستم. همدلته مې لیلما هم ولیدله، له وینو سره مې زړه هم دلته پرېښود. زه د خورکورته ولاړم، خو زړه مې را سره نه و، له هماغې ورځې زمونږ د مینې خوږې شیبې پیل شوې.

دسمال مې ورکړ چې پوزې ته یې ونیسي. داخل یې ومنله.

زما سترګو ته ځیر شو:

ـ تا مینه کړې ده؟

لیونیه انسان بې مینې ژوند کولای شي؟

ـ هو، هو، ما داسې انسانان ډیرلیدلي دي.

د خاورو ډیري ته یې ګوته ونیوله:

ـ دا یې یوه نمونه ده، نه پوهیږم که انسان ورته ووایم. ګناهګار به شم خو همداسې زما او ستا په خیر بنیادمان و، زما خوږ کابل او زما مینه یې داسې په وینو او خاورو ولړله.

په سترګو کې یې اوښکې ډنډ شوې، ژر ژر یې پاکې کړې، پسې زیاته یې کړه:

ـ په دې کوڅه کې یې پوسته جوړه کړې وه. زه راغلم لیلما مې ولیدله چې راووتم دوه کسه وسله وال مې مخې ته شنه شول.

راته ویې ویل: که بیا مو دلته ولیدې خون به دې پخپله غاړه وي.

زه تش لاس وم، دوی دواړو ټوپک درلودل. د هغو زخمونو نښې مې لاتراوسه په وجود کې پاتې دي.

شفاخانې خو نه وې، چې پکې بسترشوی وای، په کابل یې اور بل کړې و.

چوپ شو، لکه څه چې ورپه زړه کوي، خپله ټنډه يې ټينگه پـه گوتـو کې ونيوله، نورې خبرې يې په ډك ستوني وكړې:

ـ زه زه بې خداى پاماني ولاړم، هغـه مـې ونـه ليدلـه. زه گناهگار يم. بې خداى پاماني ولاړم، بې خداى پاماني

له لړزيدلو لاسونو يې له جيب نه بټوه راوايستله پـه بټوه كـې عكـس يې زما مخې ته ونيو:

ـ له دغې پرښتې بې خداى پاماني تللى وم

ددې لپاره چې رانه خپه نشي عكس مې ترې واخيست.

دده ترخنگ له ونې لوړه نجلۍ چې په تورو غټو سترگو يـې پيكـى را پروت و. ولاړه وه.

لكه چې پرې ويرېږي ژر يې زما لـه لاسـه واخيسـت، داسـې ورتـه ځيـر شو لكه چې لومړى ځل يې ويني.

بيا يې په لړزيدلي آواز وويل:

ـ له هغې ورځې راهيسې همدا عكس دى چې د زړه پـه سر مـې سـاتلى دى، يوه شيبه مې هم له زړه نه دى لرى كړى.

لكه څه يې چې په ياد شوي وي، عكس يې بيـا زمـا مـخ تـه ونيـو ويـې ويل:

ـ يو وار خو يې نږدې په دې عكس وژلى وم.

ما د پوښتنې په علامه ورته وكتل، ده وويل:

ـ په هغه ورځ هم په لاره كې سخته تلاشي وه. زمـا لـه جيـب نـه يـې دا عكس وكيښ، چې ورته ويې كتل، په غوصه يې پوښتنه وكړه:

ـ دا عكس دچا دى؟

نږدې مې ورته ويلي و. دا زمـا مينـه ده. نـه پـوهيږم ولـې مـې ترخولـې ووتل دامې خورده.

د ټوپکوال سترګې رډې رډې راوختلې ویې ویل:

ـ د سړي خور داسې وي؟

لیلما ته د خور په ویلو مې د ګناه احساس ونه کړ. هغه زما مینه وه، زما معشوقه بلل کیده. اوس مې د ټوپکوال له ډاره خور نه وه ورته ویلې، بس همداسې مې په خوله راغلل.

ما له هغې سره داسې مینه لرله چې تراوسه مې نه ورته معشوقه ویلې وه نه مې هم خور. بس تردې نومونو یوه لوړه مینه یوه پاکه او مقدسه مینه، چې نوم اوس هم نه ورته لرم. خپله پخوانۍ خبره یې بیا تکرارکړه:

ـ تا مینه کړې ده؟

ـ هو. زما په زړه هم د مینې تندر لویدلی دی. ښکلا زما زړه هم لړزولی دی، خو ستا په څیر یې د کور په خاورو اوښکې نه تویوم. ماهم دلته مینه کړې ده، خو په هغه خوا هم ورتاو نه شوم.

ـ عجیبه ده دا نو بیا مینه نه ده.

ـ که ته یې مینه بولې که نه، خو ماهم له یوچا سره مینه لرله. زما مینه هم د جګړو بلا وخوړه. اوس مې پښې دا توان نه لري چې هغې کوڅې ته ورشم. نه پوهیږم د هرچا احساس بیل وي. زه له همدې امله نه غواړم هغه وخت، هغه جګړې او هغه ترخې شیبې رایادې کړم. ځکه خو مې ته وینې چې د کابل په ورانیو پټې سترګې تیریږم.

ورته ومې خندل ترلاس مې ونیو:

ـ راځه راځه زموږ په مینو خاورې اوښتې دي. په یادولو یې د زړه زخمونه لاژوریږي.

له ځانه سره یې څه وویل: د خاورو ډیري ته یې وروستۍ دعا وکړه. او له ما سره را روان شو.

☆ ☆ ☆

په کلیو کې خلکو بیا ژوند له سره پیل کړی و . له پاکستانه یوه نیمه کډه راغلې وه، د لاندو شپې ورځې وې، زه او اجمل به نن دلته سبا هلته میلمانه وو.

زه دلته هم د جګړې په ورانیو پټې سترګې تیریدم.

په میلمستیاووکې، دجګړو، کامیابیو، ناکامیو او اتلولیو کیسې په لوړیو ورځو کې زیاتې کیدلې، خو وروسته خلك زما په طبعه پوه شول چې دغه کیسې مې نه خوښیږي. نو د جګړې په باره کې خبرې به یې ژر بس کړې.

زموږ د ځواني شپې ورځې خو نه شوای راګرځیدای، خو ما هسې ځان داسې ښوده چې بس هغه وخت دی هغه کلی دی هغه مینه ناك خلك دي، او هغه خوښۍ دي.

هغه د چا خبره ځان مو په زوره خوشاله ښوده.

خود ژوند له واقعیتونو سړی نه شي تښتیدلای. دهغه لیوني لیدلو بیا ترخو وختونو ته ورستون کړم.



په بازارکې ماشومانو پسې اخیستی و . ماشومانو په ډبرو ویشت چې د بازار یوې څنډې ته له ماشومانو لرې ولاړ . راناري یې کړې:

بیا نه درځمه. بیا نه درځمه.

موږ د هوټل په برنډه کې چای سوراوو . اجمل په ماشومانو منت وکړ

څو شیبې وروسته لیونی بیا دې خوا راغی. سندره یې زمزمه کوله

سپینې خیمې په پاکستان ولاړې دینه

بیا نه درځمه وه رنګ شي کابله بیا نه درځمه

بیا نه درځمه. هوبیانه درځمه. څه لیونی خونه یم چې درشم بیا نه درځمه. کابله بیا نه درځمه. خمارې بیا نه درځمه. بیا نه درځمه.

لیونی د هوټل مخې ته راغی، د هوټل دریم پوړ ته یې په ځیرځیر وکتل له اسویلي سره یې وویل.

ـ څوك به د کابل ورانې کوڅې له یاده وباسي.

موړ ته یې مخ راواړاوو:

ـ داسې څوك به وي چې د کابل ورانې کوڅې له یاده وباسي که کوم لیونی وي له یاده به یې وباسي.

په هوټل کې ناستو هوښیارانو پرې وخندل.

لیونی هماغسې ګډ وو.

ـ کابل یې رنګ کړ، داسې یې رنګ کړ لکه د دښمن کور، ښه یې رنګ کړ، هی، هی، لمبې څه لمبې وې، کابل یې وران کړ هغه یې مړه کړه.

سپینې خیمې په پاکستان ولاړې دینه

بیا نه درځمه وه رنګ شې کابله بیا نه درځمه

بیانه درځمه، درته مې وویل چې نه درځمه.

له خندا شین شو:

ـ کنډوالو ته څوك ورځي؟ هه هه هه څه لیونی خو نه یم، کابل یې وران کړ. زما کابل یې په لږ وخت کې داسې وران کړ. لکه چې بیخي نه و.

آواز یې لوړ کړ:

ـ کابل چا وران، چا وران کړ؟ چا، چا؟ ولې، ولې؟ ګناه یې څه وه؟ هی، هی، ولې؟ ولې؟

په ژړا شو:

ـ کابل چا وران کړ؟ ولې؟ کابل ما وران کړ؟ تا وران کړ؟ نو چا وران کړ؟ بل څوك نه دي راغلي یازه وم یا ته وې.

په ژړا کې یې وخندل:

ما او تا وران کړ. خو په ځان یې نه راوړو.

اوس نو چا نه پوري خندل، ټولو ځمکې ته کتل. کله کله به یې یو بل ته وکتل. لکه چې د کابل د ورانۍ مسؤولیت د هغه بل په غاړه وراچوي.

د لیوني له خبرو زه هم نه شوای تښتیدلای.

هغو اولو خبرو یې راویښ کړی وم.

ـ داسې څوك به وي چې د کابل ورانې کوڅې له یاده وباسي؟

بیرته به یې ځواب ورکړ:

ـ که کوم لیونی وي له یاده به یې وباسي.

ځان ته مې پام شو آیا زه لیونی یم؟ زه د کابل په ورانو کوڅو پټې سترګې راتیرشوم، زه لیونی یم، حتمًا لیونی یم که لیونی نه یم. نو خوږ کابل مې ولې له یاده وتلی دی؟ خپله مینه مې ولې له یاده وتلې ده؟

لیونی هماغسې لګیاوو:

سپینې خیمې په پاکستان....

بیا نه درځمه، بیا نه درځمه

خپل غږ یې ښه پسې لوړ کړ:

ـ ای خلکو! زه ګناهګار یم، کابل ما وران کړ. دا نور خو یې نه مني، ما وران کړی، ما ښایسته کابل رنګ کړ، هغه هم ما مړه کړه، زه ګناهګار یم زه زه....

د پوښتنې څوك شته؟ راشئ ما ونیسئ، کومه محکمه شته؟

د هغه قاتل هم زه یم، د زوی ښځې یې هم ما ماتې کړي. ما مې خور سرتوره کړه، د خور د سر ټیکری مې ایسته وغورځاوو، هه هه هه.

یو تن چې کلاشینکوف یې په زنګنونو ایښی و، او له خپلو ملګرو سره یې هنداونه خوړله لیوني ته ورغږ کړ:

ـ ملوکه راشه هنداونه وخوره، زیاتي خودې ډیر لچکر(لکچر) ورکړ، راځه هنداونه وخوره ډیره خوږه ده.

بې واره مې له خولې ووتل:
ـ اوه دا هماغه ملوك نه دی؟
ليوني بدبد ورته وکتل:
ـ نه درځمه، نه درځمه، ته يې وخوره، چې نوی آباد شوی يې.
هغه وخندل:
ـ ولې نه راځې؟
ـ نه درځمه، کابل تا وران کړی دی، ما وليدې چې تا وران کړ.
تر هندوانې راچاپيرو نورو هم وخندل هغه. بيا ورته وويل:
ـ ليونيه، رښتيا چې ليونی يې.
ليوني په غوصه وويل:
ـ ولې خپه شوې زه خو څه درواغ نه وايم.
ما ليدلي دي، د تا غوندې پکول يې په سر و، ټوپك هم ورسره و، کابل يې په راکټو وويشت، کټ مټ دغسې خلك و لکه دا ته.
سړی داځل په غوصه شو:
ـ ځه له دې ځايه رنګ دې ورك کړه ليونيه.
ـ ځمه ځمه، زه ليونی يم، له تاسې هوښيارو سره زه هم نه کينم خو ته يو وار حتمًا په آئينه کې وګوره.
ليونی روان شو خپله سندره يې بيا له سره را واخيستله.
سپينې خيمې په پاکستان ولاړې دينه
بيا نه درځمه وه ړنګ شې کابله بيا نه درځمه
اجمل مخ راواړاو:
ـ زو مړ کې عجيب ليونی و، دا يې څه ډول خبرې کولې. په ما خويې بيخي خولې راماتې کړې.
ما ورته وويل:

ـ لیونیان هم عجیبه دنیا لري، هغه څه به وایي چې موږ یې ټول ویل غواړو، خو نه یې وایو.

اجمل له اسویلي سره وویل:

ـ په حقیقت کې موږ ټول لیونیان یو.

ـ څنګه؟

ـ زه وایم که موږ عقل او احساس لرلای، اوس باید د غرو لیونیان شوي وای، زموږ لیونتوب په نه لیونتوب کې دی.

ما یې د سر په اشاره خبره تائید کړه.

خو یو بل سړی چې زموږ ترڅنګ ناست و. مانه پیژانده او دا نورو ملك صاحب باله له ده سره موافق نه وو، شمیرلي شمیرلي یې وویل

ـ نه. که ددې سړي په ځای هرڅوك وای. د غرو لیونی به و.

ما پوښتنه وکړه:

ـ ملك صاب دا هغه ملوك نه دی، چې کلي ته یې د مرګ آوازه راغلې وه؟

ـ هو. آوازه نه. چې فاتحه یې هم واخیستله او خیرات یې هم پسې وکه.

اجمل وویل.

ـ وایي چې قوماندان هاشم یې نجل ته سترګې پټې کړې وې هغه ویشتلی و. خو دی خدای ژوندی پاتې کړ.

ملك وویل.

ـ هو هو بالکل همداسې ده. بیا یې ډیر کوښښ وکړ چې ددغه غریب کوژدنه د ځان کړي، هغه خواره کۍ هم له ځیګرخونۍ مړه شوه. او ملوك یې له غمه لیونی شو.

د جګړې په دا دومره کیسو کې چې د کلي په میلمستیاوو او

پیتاوو کې به کیدې چا د ملوك د لیونتوب کیسه نه وه کړې او یا ما نه وه اوریدلې.

تیر وخونه مې د تتو تصویرونو په څیر د سترګو په وړاندې تیروبیر کیدل، څه مې چې لیدلي یا اوریدلي ول، ځورولم یې.

په بازار کې د لیوني ملوك خبرو، هغه ټول دروا غجن سکون او ارامي رانه اخیستې وه نور مې نو ځان نشوای غولولای.

ماخو نه غوښتل چې په اوسني وخت کې واوسم. کلي ته هم ددې لپاره راغلی وم، چې له جګړو دمخه په مینه ناك کلي کې څو شپې له خپل ذهن څخه د جګړو د کرکجنو شیبو ګرزونه او دوړې وڅنډم. د کابل له ورانیو هم په پټو سترګو راتیرشوی وم، په کلیو کې مې هم هغو کلاوو او باغونو ته چندان پام نه کاوو، چې ښکلا یې د جګړو بلا خوړلې وه. له هدیرو په څنګ تیریدم، ټولو مړو ته مې په اوله ورځ په جوماتی کې دعا کړې وه، بیا د فاتحې لپاره د چاکره نه وم تللی. نه مې غوښتل بیا یې ورپه یادکړم، ما هسې غوښتل ځان خوشحاله وساتم او د ټولې ماضي او آن حال د هیرولو ناکامه هڅه مې کوله.

اوس داسې وم، لکه چې له یوه اوږده خوبه راویښ شوی یم. ډیرې تیرې پیښې را ته خوب معلومیدې خوبونه او واقعیتونه مې نه شوای سره بیلولای، په دې دومره موده کې مې ډیرې داسې پیښې لیدلې یا اوریدلې وې، چې په خوب کې هم ممکنې نه وې، په ډیرو مې باور نه درلود، بس هسې خوبونه مې بلل چې رښو او روانو اوبو ته مې ویلې او اوبو وړې و.

ملوك لیونی شو، خماره مړه شوه، قوماندان هاشم څه شو؟ سموت چیرې دی؟ د شکور به څه حال وي؟

لکه چې د هریوه عکس په دیوال مخامخ راته ځړیږي. ټول مې یودم

ذهن ته راغلل، یاسمین به اوس چیرته وي؟ په دې دومره موده کې چا د ګل مرجان د اولادونو په باب یوه خبره هم نه وه کړې

له هغه وخته چې له وطنه مې کډه بار کړې وه، له ځانه سره مې ویلي و چې نور به دا ترخې شیبې هیروم، په پاکستان کې مې هم په داسې ښار کې اړولي و، چې ډیر لږ د وطن له حاله خبریدم، دوستانو به زموږ ښار د چپ لاس جیب باله، چې د هیچا پرې لاره نه وه

ځکه خو مې دا کیسه د وطن د نورو کیسو په څیر هیره کړې وه، خو اوس چې د ملوك خبرو له درانه خوبه راویښ کړی وم، داسې وم ځکه چې ډیر ضروري کارونه رانه پاتې وي او خوب مې وخت ضایع کړی وي

سبا سهار زه او درمحمد دواړه د سموت د کلا په لوري روان شوو، سموت اوس له نورو کلیو جلا د غونډۍ په سر کلا جوړه کړې وه، د کلا له برخنګ سره یې د منو او زردالو لوی باغ هم جوړ کړی و، خو ونې یې لا په میوو نه وې راغلې

د سموت د کلا خواته څوك نه ول، د کلا مخې ته لږ لرې یوه میرمن د غوشایو د ذخیرې ترڅنګ په کار لګیا وه، له غوشایو څخه یې د مزري توکرۍ ډکه کړه او د کلا د دروازې په خوا روانه شوه چې موږ یې ولیدو، له دیواله سره ودریده، مخ یې دیواله ته وګرځاوو

درمحمد پوښتنه وکړه

ـ وریندارې عصمت الله په کور کې دی؟

په ماته ګوډه پښتو یې ځواب راکړ

ـ هغه خو له میلمانه سره په باغ باندې تللې دی

او له دې سره د دیوال ترڅنګ د کلا د دروازې په لوري روانه شوه

درمحمد وویل

ـ دا د سموت دویمه ښځه ده کابلۍ ده

ماوویل.

ـ تعلیم به یې هم کړی وي؟

ـ هو، په حکومت کې یې کار کاوو. دا ډېره لویه کمونیسته وه ډېره ښایسته وه قوماندان هاشم پې مین و. یاسمین نومېږي.

ـ او اوس خوارکۍ خوشایې ټولوي.

درمحمد وویل:

ـ یره ریښتیا مور. ګناه هغه بولو چې لاس مو نه پې رسیږي.

ـ څنګه؟

ـ سموت څو واره ددغې په سر له قوماندان هاشم سره جنګ وکړ، ورته ویل به یې چې له دغې کچنۍ لرې ګرځه. دا دې ګناه ته باسي. خو ده پخپله واده ورسره وکه. ده هغه

دده خبرې لا خلاصې نه وې، چې د باغ له دروازې څخه یوه ډله خلک راووتل. ما د هغوی په منځ کې سموت وپیژاند. دده څېره چندان بدله شوې نه وه. هماغه خوشحاله او خندانه څېره په خوله کې راپراته اوږده بریتونه چې څوارلس پنځلس کاله دمخه مې لیدلې و.

درمحمد ویل چې یوځل یې ډېره هم پرې ایښې وه، خوله نوی واده وروسته یې وخریله.

درمحمد زه وروپیژندلم. سموت له نورو میلمنو سره همدلته خدای پاماني وکړه او له مور سره یوځای میلمستون ته ولاړ. سموت ددغه داستان له وروستیو پېښو څخه خبر و. خو معلومیدل چې ډېرې خبرې مور ته نه کوي. له خبرو یې دومره پوه شوم، چې قوماندان هاشم له زندانه وروسته بیرته له خپل تنظیم سره یوځای شوی و. آن تر وزارته هم رسیدلی و. بیا له نورو تنظیمونو سره له جګړې وروسته تښتیدلی و.

هلته د بم په چاودنه کې وژل شوی و.

عبدالشکو په دې جګړو کې د هاشم سلاکار و. ټاکلې دنده او تنخوا یې نه لرله، خو هاشم یې ټول لګښتونه ورکول، ویل کیدل چې موټر هم هاشم ورته اخیستی و.

شکور د هاشم له وژل کیدو دمخه مسکو او وروسته هالینډ ته تللی و.

په هغو شپو ورځو کې زاړه مکرویان د جګړې لومړۍ کرښه وه. د دوو ډلو په جګړه کې د یاسمین یوازینی لورهم ورکه شوې وه. سموت په پوښتنه پوښتنه یاسمین چې د خپل ورور اصف په کور کې له نورو ګاونډیانو سره اوسیدله پیدا کړې وه، یاسمین د جنګي ډلو له زندان څخه له ملوك او اتل سره یوځای راوتلې وه

او اصف له خپلې کورنۍ سره تاجکستان ته تللی و.

ملوك چې په روغتون کې هیواد شل او شوټ ولید. له روغتونه وتلی و، څو شپې د غزني په ښار کې و، بیا چا خپلې سیمې ته راوستی و، له هغې ورځې لیونی شوی و، هیواد اوس په کابل کې د معلولینو او معیوبینو د اتحادیې رئیس دی، کلاخان په جګړو کې له کابله وتلی و. اوس د پاکستان په کراچۍ کې د قسطونو دکان لري. قوماندان غفار معین ټاکل شوی و ، اوس په ولایت کې د امنیې قوماندان دی



په څه خواریو او زاریو مو ملوك راضي کړ. چې کابل ته یې د علاج لپاره بوزو. ما او اجمل غوښتل چې علاج یې په پاکستان کې وکړو. خو ملوك مرګ ته حاضر و، خو هلته تګ ته نه.

ـ نه نه هلته نه ځم. هلته سپینې خیمې ولاړې دي بیابه مې خپل کابل د ړنګیدو ښیرې تر خولې وتلې وي. نو بیا به څه کړم؟ ها تاسې وواییـ

او ورپسې به یې دا سندره په لوړ آواز زمزمه کړه:

سپینې خیمې په پاکستان ولاړې دینه

بیا نه درځمه وه ړنګ شي کابله بیا نه درځمه

کابل ته د تلو په لاره هم دا سندره د ملوك له شونډو لرې نه شوه، چې کله به یې له خندا او کله له ژړا سره ویله.

په کابل کې علی آباد روغتون هم ددې هیوا د نورو اوسیدونکو غوندې له خپل اصلي ځایه بل ځای ته کډه بار کړې وه.

تر ماښامه مو ایله د روغتون نوی ځای پیدا کړ، ملوك مو همدلته بستري کړ.

په دې روغتون کې یې علاج ونه شو. بیا مو د بهرنیانو په کلینك کې بستري کړ، الماني ډاکټرانو وعده وکړه چې ملوك به د علاج لپاره المان ته لیږي، فورمې مو ډکې کړې، په څو ورځو کې مو المان ته د ملوك د استولو نور سندونه هم بشپړ کړل.

خو د ملوك حالت لا هماغسې و، یوازې یې په ځیره کې څه بدلون راغلی و.

المان ته د ملوك د استولو نیټه د مارچ ۵ مه ټاکل شوې وه، زه هم څو ورځې کلي ته ولاړم.

چې بیرته راغلم ملوك هغه ملوك نه و. د کلینك په کوټه کې د کړکۍ ترڅنګ په چوکۍ ناست و، چې په ما یې سترګې ولګیدې مخې ته یې رامنډه کړه ښه شیبه یې په غیږ کې نیولی وم، خوله یې له خندا نه سره ورتله ویې ویل:

ـ ته چیرې وې خدای خوار کړې، پوهیږې چې زه خدای په تیر اخیر نیکمرغه کړم.

ـ څه خبره ده؟

ـ څه خبره ده، ته لا خبر نه یې، ژولیا مې ولیدله.

ـ ژولیا؟ ژولیا څوك ده؟

ـ ژولیا؟

په چرت کې شو، له لږ ځنډ وروسته یې وویل:

ـ ژولیا، ژولیا ده.

لکه چې د ریاضي له سختې پوښتنې سره مخامخ شوی وي، پخپل ذهن کې د پوښتنې په سم ځواب پسې ستړی و، بیا یې وویل:

ـ ژولیا، ژولیا، نه پوهیږم، ژولیا ښایي د خمارې روح وي، له بیګا راسې زه هم په دې فکر کوم چې ژولیا څوك ده؟ اوس له مور سره یوځای ځي.

په سبا ملوك د نورو ناروغانو په ډله کې چې مشره یې یوه نری جګه شین سترګې میرمن وه د علاج لپاره المان ته ولاړ.

((پای))


















**علم گل سحر** د اروا ښاد محمد سليم زوی په ۱۳۴۳ کال د پکتيا ولايت د زرمت ولسوالي د اسلام خيلو په کلي کې دنيا ته سترګې غړولې دي. خپلې زده کړې يې د زرملې د باتور ښوونځي، د غزني په شيخ عطار ليسه او کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو په پوهنځي کې کړې دي.

په ۱۳۶۰ کال کې د پکتيکا د پوهنې په رياست کې وريسې په غزني او په ۱۳۶۸ کال کې د پوهنې وزارت د سواد مجلې مرستيال، د عرفان مجلې مرستيال او مسوول شو. په ۱۳۷۵ کال کې د کورنيو چارو وزارت ته تبديل شو.

په ۱۳۷۸ کال کې د بي بي سي راډيو په تعليمي خپرونو کې د ليکوال په توګه وګومارل شو.

په ۱۳۸۱ کال کې د آزادي راډيو د ژوند په شيبو کې د خپرونې مسوول او پروډيوسر وټاکل شو.

نوموړی د ۱۳۶۲ کال راهيسې شعر وايي او داستانونه ليکي.